بسم الله الرحمن الرحيم

شماره مضمون صفحه


1. د قتل تعریف ........ 3
2. د قتل قسمونه ........ 4
3. قتل العمد (قصدي) ........ 5
4. قتل عمد څه وخت مینځ ته راځي؟ ........ 6
5. د قتل عمد صورتونه ........ 7
6. د قتل عمد (قصدي وژنې) سزا ........ 8
7. د قتل عمد ارکان ........ 9
8. قتل عمد څه وخت قصاص واجبوي ؟ ........ 11
9. قتل شبه العمد (لکه قصدي) ........ 12
10. د شبه العمد صورتونه ........ 14
11. په شبه العمد کې د قاتل سزا ........ 14
12. قتل خطاء (خطایي وژنه) ........ 15
13. د قتل خطاء سزا ........ 16
14. قتل عمد (قصداً وژل) ........ 18
15. د زمکې په مخ لمړی قتل ........ 18
16. د قتل حرمت په قرآن کریم کې ........ 22
17. قتل په احادیثو کې ........ 27
18. د قتل سره د دین لپاره سینه تنګیږي ........ 27
19. قتل لکه شرک داسې لویه ګناه ده ........ 28
20. د مسلمان مرګ نه دی روا ........ 28
21. قاتل د الله بد ایسي ........ 29
22. مسلمان ته شکنځلې هم ګناه ده ........ 30
23. بې ګناه وژل الله ته ډیر لوی شی دی ........ 30
24. د رسول الله ﷺ وصیت ........ 32
25. د قیامت په ورځ اول فیصله د وینو کیږي ........ 34
26. که چا د الله لپاره قتل کړی وي هغه به خلاص وي 35

27. د امان نه وروسته قتل لوی جرم دی......................36
28. قتل یو عذاب دی..........................................................37
29. یو ورغوی وینه هم انسان له جنت نه محروم کولی شي..........................................................................39
30. د مسلمان په ساتنه کې کوښښ کول.........................40
31. په قتل کې شریکو ټولو کسانو ته عذاب رسیږي..41
32. ترقیامت وړاندې به یو وخت مرګونه زیاتیږي.....43
33. د کفارو د ماشومانو مرګ هم نه دی روا.............43
34. قتل په ډېرو لویو ګناهونو کې یوه ده...............44
35. د مسلمانو په جنګ کې قاتل او مقتول دواړه په اور کې وي...........................................................48
36. قتل شیطان ته ډېره خوښه ګناه ده.........................48
37. قتل د انسان دیانت خرابوي...................................49
38. واقعه...........................................................................50
39. د قصداً وژونکي توبة........................................52
40. یو څوک قتل ولې کوي؟.........................................55
41. د قتل سببونه.............................................................56
42. د قتل لمړی سبب کینه..............................................56
43. د کینې نه ځان خلاصول............................................60
44. د قتل دوهم سبب کفر.............................................62
45. د کفر نه ځان خلاصول...........................................64
46. د قتل دریم سبب فقر..............................................66
47. د قتل څلورم سبب شرم او غیرت..........................70
48. د قتل پنځم سبب نشه...............................................71
49. د قتل شپږم سبب د کفارو او فاسقانو سره مینه ..........................................................................................75
50. د قتل اووم سبب بغاوت........................................78
51. د قتل آتم سبب ددنیا مینه.......................................78
52. د قتل نهم سبب د ښځو فتنه....................................81
53. د قتل لسم سبب غصه...............................................82
54. د قتل عمد (قصدي وژنې سزا)..................................83
55. قصاص............................................................................84
56. د قصاص تعریف........................................................87
57. قصاص تر اسلام وړاندې.........................................88
58. په یهودو کې قصاص..................................................90

59. تر اسلام وړاندې په عربو کې قصاص........................91
60. په عیسائیت کې قصاص........................................93
61. په اسلام کې قصاص..........................................93
62. په اسلام کې د قصاص صورت..................................94
63. قصاص په احادیثو کې........................................99
64. د قصاص حکمت..............................................102
65. لمړی حکمت.................................................104
66. دوهم حکمت.................................................106
67. په قصاص باندې د غیر مسلمو اعتراضونه...........107
68. لمړی اعتراض...............................................107
69. دوهم اعتراض...............................................109
70. دریم اعتراض...............................................109
71. څلورم اعتراض..............................................110
72. پنځم اعتراض...............................................111
73. شپږم اعتراض...............................................112
74. اوم اعتراض.................................................114
75. د قصاص مسئلې.............................................116
76. قصاص اخیستل د چا حق دی؟................................119
77. تر مرګ نه شکته قصاص......................................120
78. دیت.........................................................127
79. دیت به څوک ورکوي؟.........................................128
80. دیت څه وخت ورکول کیږي.....................................129
81. د دیت احکام.................................................130
82. د دیت اندازه.................................................131
83. کفاره........................................................140
84. ماخذونه.....................................................143
85. د مؤلف چاپ شوي آثار.......................................145



Ÿ

الله انسان په ډېرو کمالونو باندې مکمل پيدا کړی دی او په ټولو مخلوقاتو کې يې ورته ښه شکل او ښه جوړښت ورکړی دی او ددې ستاينه الله په قرآن کريم کې هم کړېده او انسان الله ته ډېر ګران مخلوق دی په خاصه توګه هغه بنده چې ايمان يې راوړی وي او په اسلام مشرف شوی وي هغه ورته نور هم زيات ګران وي او هغه ته په هر ډول ضرر رسولو او تکليف ورکولو باندې خفه کيږي او بيا د هغه په وژلو...؟ خامخا ډېر زيات خفه کيږي او په قرآن کريم ورڅخه په سختو الفاظو باندې منع شوې ده او همدارنګه په احاديثو کې په سختي سره بندګان د چا له وژلو څخه منع کړل شوي دي او په قرآن کريم کې له لويو ګناهونو څخه يوه ګڼل شوېده بلکه په څو ځايونو کې د شرک سره په يوځای ذکر کړل شوېده کومه چې معلومه نه بښل کېدونکې ګناه ده الله فرمايي : وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ يَلْقَ أَثَامًا . يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا .[1]

ترجمه : او (بندګان د رحمن) هغه کسان دي چې نه بولي سره له الله معبود بل او نه وژني دوی نفس هغه چې حرام کړی دی الله (وژل د هغه) مګر په حق سره او هر چا چې وکړه (يو له دغو دريو امهات الذنوب نه) نو ملاقات به وکړي و به ويني جزاء د ګناه خپلې چې دوه چند به کړل شي ده ته عذاب ( د دوزخ) په ورځ د قيامت کې او تل به پاتې وي په دغه (عذاب) کې په دې حال چې خوار ذليل بې اعتبار به وي.

[1] سورة الفرقان آية ٦٨ او ٦٩

په قرآن کريم کې چې قتل ته کوم عذاب او کومه سزا ياده کړل شوېده دا بلې کومې ګناه ته نه ده ياده کړل شوې لکه الله چې فرمايي : **وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا** . [1]

ترجمه : او هر څوک چې مړ کړي کوم مؤمن په قصد سره (او د مسلمان دغه قتل روا هم وګڼي) نو جزا د ده دوزخ دی (په داسې حال کې) چې تل به وي دی (دغه حلال ګڼونکی د قتل) په هغه ((دوزخ)) کې او غضب (قهر) کړی دی الله په ده باندې او لرې کړی دی (الله ) دا (قاتل) له خپل رحمت څخه او تيار کړی دی ده ته عذاب ډېر لوی .

او ځينې علماء پدې ځای کې فرمايي چې اسلام بغير د ضرورت نه د يو حيوان د قتل نه بده وړي او بيا د يو انسان قتل او بيا يو مسلمان انسان ... او څرنګه چې په اوس وخت کې مرګونه ډېر زيات شوي دي او هغه کسان چې د مسلمانانو په مرګونو باندې آخته دي هغوی ته دا هېڅ کومه لويه خبره نه ښکاره کيږي بلکه ډېره خطرناکه خبره خو داده چې ډېر په اسانه سره يې ځان ته حلال او روا هم ګڼي نو ځکه زم زم ادارې مناسبه و ګڼله چې د حتمي سفر د کتابونو په سلسله کې دې موضوع ته بېل ځای ورکړي او يو خاص کتاب پرې تيار کړي پدې کتاب کې به د قتل په اړه آيتونه او احاديث ، د قتل قسمونه ، احکام او نورې خبرې به يو په بله پسې راشي ان شاء الله کېدای شي زمونږ دا کوښښ د کوم ويده زړه د را وېښېدلو سبب شي او دا زمونږ لپاره د خوشحالي خبره ده لکه رسول الله ﷺ چې فرمايي دا چې الله په

[1] سورة النساء آية ٩٣

تاسره يو كس ته هدايت وكوي دا تاته له غوره نعمتونو څخه غوره ده .

## د قتل تعريف

په لغت كې دا ق ت ل حروف دي ددېنه جوړ شوى اصل په وژلو ، د كوم ژوندي شي د ژوند په ختمولو دلالت كوي .[1]

**قتلَ يَقتُل ، قَتْلاً ، فهو قاتِل ، والمفعول مَقْتول وقَتيل قتَل الحيوانَ /قتَل الشّخصَ : أماتَه ، ذبَحَه ، أزْهَقَ روحَه ، فتَك به** د حيوان قتل يعني د هغه وژلو ، د هغه نه روح ويستلو او د هغه حلالولو ته ويل كيږي دا مړه كول د قتل حقيقي معنى ده كله كله دا په معنى مجازي كې هم استعماليږي لكه څوك يو څوك سخت ووهي هم نو عرب وايي قتله يعني مړ يې كړو سره ددې چې ساه ورڅخه نه وي وتلې همدارنګه عرب وايي **قتله العشق** (مينې مړ كړو) يعني ډېر يې وځورولو كله كله يو بل ته وايي قتلتني تا مړ كړم يعني ډېر د وځورولم .

په اصطلاح كې دا لكه مرګ داسې دى لكن چې نسبت يې كوونكي ته وشي نو بيا د موت په ځاى د قتل لفظ ورته كارول كيږي يعني چې له چا څخه او يا له كوم شي څخه ساه وزي د هغه له لوري ورته موت ويل كيږي او كه ددې ساه وتلو سبب يو كس جوړ كړى وي نو لدې لوري نه ورته قتل ويل كيږي ددې امله يې ځينې علماوو داسې تعريف كړى دى : **هو فعل من العباد تزول به الحياة** .[2]

ترجمه : د بندګانو له لوري شوى يو كار دى چې د حياة د زائل كېدلو سبب شي .

---

[1] **معجم المقاييس**
[2] **عقوبة القتل في الشريعة الاسلامية**

او ځینې علماوو یې داسې تعریف کړی دی .

**الفعل المؤثر في ازهاق الروح.**[1]

ترجمه : هغه عمل دی چې د روح د ویستلو لامل او سبب شي .

دلته به مونږ په همدې ځای کې د نورو حیواناتو قتل او وژنه پرېږدو مونږ به خپل بحث یوازې د انسان په وژنه او قتل باندې را وڅرخوو نو د پورتنیو معنا ګانو په خلاصه کې مونږ ویلی شو چې کله له انسان څخه روح پخپله وزي نو دېته الموت (مرګ ویل کیږي) او که انسان پخپله ددې باعث شي چې له ده څخه روح وزي نو دېته انتحار (خود کشي ) ویل کیږي او که چېرته بل څوک ددې باعث شي چې له چا نه روح وزي نو دېته قتل (وژنه) ویل کیږي .



[1] فقة العقوبات في الشريعة الاسلامية

# د قتل قسمونه

قتل په درې ډوله دی :

١. العمد (قصدي)

٢. شبه العمد (لکه قصدي)

٣. خطاء (خطايي )

## قتل العمد (قصدي)

د قتل عمد په اړه امام کاساني فرمايي : **فَهُوَ أَنْ يَقْصِدَ الْقَتْلَ بِحَدِيدٍ لَهُ حَدٌّ أَوْ طَعْنٌ كَالسَّيْفِ، وَالسِّكِّينِ، وَالرُّمْحِ، وَالْإِبْرَةِ، وَمَا أَشْبَهَ ذَلِكَ، أَوْ مَا يَعْمَلُ عَمَلَ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ فِي الْجَرْحِ، وَالطَّعْنِ كَالنَّارِ، وَالزُّجَاجِ .** [1]

ترجمه : قتل عمد دادی چې اراده د قتل وکوله شي په داسې وسپنه سره چې يو طرف يې تېره وي لکه توره ، چاړه ، نيزه ، ستنه او يا دېته ورته شيان او يا داسې شی چې ددې شيانو کار کولی شي په زخم لګولو کې يا ځوخولو کې لکه اور او شيشه ... او ځينې علماء يې بيا لنډ تعريف کوي او وايي : **ضرب إنسان بقصد قتله سواء كان بحجر أو حديدة أو عصا** (وهل د انسان دي د وژلو په نيت که په تيره سره وي ، که په وسپنه سره وي او که په همسا سره وي) او ځينې علماء يې شه تفصيلي تعريف داسې کوي : **هو أن يقصد قتل شخص بما يقتل غالباً، كالسيف والسكين وغيرهما، مما هو محدد أي: (الآلات الحادة)، وكذلك ضربه بمثقل كبير يقتل مثله غالباً. سواء كان من حديد، كمطرقة وشبهها، أم كان من غير الحديد كالحجر الكبير، ويدل**

[1] البدائع الصنائع

لذلك ما رواه أنس رضي الله عنه أن جارية وجد رأسها قد رض بين حجرين، فسألوها من صنع بك هذا؟ فلان فلان؟ حتى ذكروا يهودياً، فأومأت برأسها، فأخذ اليهودي فأقرّ، فأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم أن يرض رأسه بين حجرين.[1]

ترجمه : قصدي مرګ دادی چې څوک د کوم شخص د قتل قصد وکوي پداسې شي سره چې په هغې سره غالبان څوک وژل کیږي لکه توره یا چاړه او یا بل دېته ورته شی هغه چې تېره وي (یعني تیره آلات وي) په همدې ډول وهل یې په لوی مارتول سره چې غالباً په هغه څوک ووهل شي هغه مړه کیږي که هغه د وسپنې وي او که د بل شي وي لکه سوټک یا داسې بل شی که د وسپنې وي او که د تیږې وي او پدې باندې دلالت کوي هغه روایت چې حضرت انس کړی دی چې د یوې وینزې سر د دوو کانړو په مینځ کې ټکول شوی وو صحابه وو ورڅخه پوښتنه کوله دا کار لتا سره چا وکولو ؟ فلاني ؟ فلاني؟ (د یو یو کس نوم یې ورته اخیستلو)تردې چې یو یهودي یې ورته یاد کړو دې په سر اشاره وکوله چې هو همده را سره دا کار وکولو یهودي یې ونیولو هغه اقرار وکولو بیا رسول الله ﷺ د قصاص په توګه امر وکولو چې دده سر هم په همدې ډول د دوو تیږو په مینځ کې وټکوئ .

## قتل عمد څه وخت مینځ ته راځي؟

د قتل عمد په راتلو کې دوه شیانو ته ضرورت دی :

١. لمړی دا چې د قاتل به د انسان د وژلو قصد وي او که بغیر د قصد نه قتل ترې وشو دېته قتل

---

[1] رواه البخاري

عمد نه ویل کیږي د مثال په ډول لکه یو انسان ښکار ویشتل غوښتل هغه انسان ولګېدو لږ وروسته به راشي چې دا قتل خطاء دی .

۲. وسیله به داسې وي چې په هغې سره چې انسان ووهل شي غالباً هغه مړ کیږي نو که په وړوکې همسا یې ووهلو یا یې په دره ووهلو یا یې په وړوکي کاڼي وویشتلو چې دومره وړوکی وي چې په عادي حالت کې د هغې په ویشتلو څوک نه مړ کیږي نو ددې نه په حق ورسېدو نو دېته قتل عمد نه ویل کیږي لږ وروسته به راشي چې دا په شبه عمد کې دی .

## د قتل عمد صورتونه

د قتل عمد لپاره ډېر صورتونه کېدلی شي زه ترینه یو څو د مثال په ډول ذکر کوم :

- چې په توره یا تېره چاړه یې ووهلو او هغه ددې وار نه مړ شو .
- چې په ټوپک ، تمانچه یا بله اسلحه باندې یې وویشتلو او ددې مرمي نه هغه مړ شو او یا یې په بم ګرنېټ یا بل شي باندې ووژلو ځکه ددینه انسان اکثر مړ کیږي او د مړه کولو لپاره استعمالیدونکي آلات دي .
- د بدن په حساسو برخو کې یې ستن او یا بل دېته ورته تېره شی ننه ایستل حساسې ساحې لکه دماغ ، سترګه ، تشی ، مثانه او داسې نور چې اهل الطب دېته حساس ځایونه وایي هلته د یوې ستنې په څېر شي د ننه ایستلو څخه هم انسان وژل کېدلی شي .
- په لوی مارتول یې ووهلو یا دېته ورته شي باندې که د وسپنې څخه جوړ وي که د تیږې وي یا د لوی لرګي وي لکه لږ وړاندې چې د یوې جاریې قصه تېره شوه چې یهودي یې سر په تیږه ورته ویشتلی او وهلی وو .

- چې په اور کې یې ور وغورځولو ، په دار یې کړو ، دیوال یې پرې را وغورځولو ، چت یې پرې را کینولو ، آس یې پرې وخېږولو ، په موټر یې ووهلو ، ژوندی یې خښ کړو ، په اوبو کې یې غوپه کړو او پورته کېدلو ته یې پرې نه ښود یا دېته ورته نور حالات ..
- مړی یې پرې خفه کړه یعني تر ستوني یې سخت ونیولو او تر ډېره وخته یې داسې نیولی وو یا یې په خوله باندې لاس یا بل څه شی ور کېښودل .
- زهر یې ورباندې و څښل ، یا یې له خوراک نه بند کړو او په قید کې یې بې ابو او خوراک نه وساتلو تردې چې مړ شو .
- د امام شافعي د مسلک له مخې په وړه دره او وړوکې همسا یې ووهلو او مسلسل یې وهلو تردې چې مړ شو نو دا هم قتل عمد دی .

دا او داسې نور د قتل عمد ډېر صورتونه دي ..

## د قتل عمد (قصدي وژنې) سزا

هغه څوک چې قصداً قتل وکوي هغه مجرم دی لېږ وروسته به یې په حرمت باندې قرآني دلائل او نبوي مبارک احادیث راشي نو هغه څوک چې دا جُرم وکوي هغه ته به څو سزاګانې ورکول کیږي .

دا سزا دوه ډوله ده یوه د آخرت سزا ده هغه چې ﷲ ورته اعلان کړیده چې قاتل به په اور کې وي او په هغه باندې به د ﷲ غضب او لعنت وي او دی به پدې کې همېشه وي او په دنیا کې ورته دوه او د ځینې علماوو له نظره درې سزاګان دي په لاندې ډول :

الف : که مړی یې له خپلوانو څخه وو او ده ته یې میراث پاتې کېدلو نو په قتل سره به دی له

میراث نه محروم شي او پدې باندې دلیل د رسول الله ﷺ یو حدیث دی چې فرمایي : **القاتل لا یرث** (قاتل به میراث نه وړي) .[1]

ب: د امام شافعي او امام مالک د مذهب له مخې په ده باندې کفاره هم شته لکن د امام ابي حنیفه د مسلک له مخې کفاره ورباندې نشته .

ج: وروسته لدې چې په شرعي توګه مرګ ثابت شي دا قاتل به په قصاص او بدل کې وژل کیږي چې پوره تفصیل او احکام به یې لږ وروسته راشي **ان شاء الله** .



[1] سنن الترمذي

# د قتل عمد ارکان

قتل عمد چې په بدل کې يې قصاص واجبيږي د هغه لپاره درى ارکان دي :

١. مجني عليه (چې په چا باندې جنايت شوى دى) هغه به دده له جنايت نه وړاندې يو ژوندى انسان وي .

معنى يې داده چې په جا باندې دا جرم واقع شوى دى هغه به له مخکې نه مړ نه وي لږ تر لږه په هغه کې به ساه وي نو بيا چې دا عمل يا دا وار او گذار پرې واقع شوى او که کس له مخکې نه مړ وو نو بيا دا هغه قتل عمد نه شمارل کيږي چې په بدل کې يې قصاص واقع کيږي سره ددې چې پدې صورت کې هم ده ته تعذير ورکول کېدلى شي چې ده د مړي د حرمت ساتنه ونه کوله همدارنگه دا جريمه به په انسان واقع شوى وي او که چېرته په حيوان واقع شوې وي نو دېته قتل عمد نه ويل کيږي بلکه دا هم يو جُرم دى چې د حيوان تلف کول ورته ويل کيږي

٢. دا قتل به په عمل د قاتل سره شوى وي .

او که دا کس پداسې يو فعل او حرکت سره مړ شوى وو چې د هغه نسبت جنايت کوونکي ته نه کېدو نو بيا هم دا قتل عمد نه شمارل کيږي او يا جنايت کوونکي داسې کار کړى وي چې د هغه نه مرگ نه واقع کيږي خو بيا هم کس مړ شو نو دا قتل هم قتل عمد نه گڼل کيږي او هغه کار چې د جنايت کوونکي له خوا ورڅخه مرگ واقع کېدلى شي د مثال په ډول لکه وهل ، حلالو، سوزول، زهر ورکول او داسې نور او چې په آلاتو د قتل سره وي يعني په داسې څه سره وي چې په هغه سره قتل کيږي

۳. د جنايت کونکي په قصد سره مرګ واقع شوی وي .

قتل به د قاتل په قصد سره واقع شو وي هغه داسې وي چې د انسان قصد به په نفس باندې تجاوز کول او د هغه ختمول وي امام ابو حنيفه او امام شافعي د قتل قصد هم شرط ګڼي او دا هم شرط ګڼي چې په همدې قصد سره به روح ويستل شوی وي او بيا څرنګه چې قصد يو باطني شی دی په سترګو نه ښکاره کيږي نو دوی آلې ته ګوري او په قصد باندې فيصله کوي د مثال په ډول څوک چې په چا پسې توره را واخلي او وربانديې وهي يې يا يې په ټوپک ولي که هغه ووايي چې زما قصد د وژلو نه وو نو نه منل کيږي ځکه دا الات د قتل لپاره دي .

## قتل عمد څه وخت قصاص واجبوي ؟

په اسلام کې د حدونوپه قائمولو کې ډېر زيات احتياط کيږي او ترڅو چې جرم په مجرم باندې په سمه او صحيح او پوره توګه ثابت شوی نه وي نو اسلام مونږ ته امر کوي چې د حدونو په قائمولو کې تادي او بيړه مه کوئ اوس د قصاص حد څه وخت قائميږي؟ کله چې :

- قاتل د قتل د عمل کونکی وي او په خپل اختيار وي.
- قتل يې پداسې قصدي ډول کړی وي چې هيڅ شبهه پکې نه وي .
- مقتول معصوم الدم وي له هر لحاظ نه يعني مرتد نه وي ، حربي نه وي ، او په ده باندې قصاص پاتې نه وي .
- قاتل به عاقل وي لېونی به نه وي .

☜ قاتل به بالغ وي ماشوم به نه وي ځکه په ليوني او ماشوم باندې په شريعت کې هېڅ ډول سزا نه راځي .

او هغه څوک چې قتل ته مجبور کړل شي او قتل وکوي امام شافعي امام مالک امام احمد فرمايي قتل دلته په کونکي د قتل دی په آمر باندې نشته او هغه ته به هسې تعزير ورکول کيږي امام ابو حنيفه فرمايي هغه چې دی يې مجبور کړی دی هغه به وژل کيږي او د امام شافعي يو قول دی چې هغه کس به وژل کيږي چې قتل يې کړی وي او هغه کس چې په قتل کولو يې دی مجبور کړی وي هغه ته به سزا نه ورکوله کيږي .

## قتل شبه العمد (لکه قصدي)

د شبه عمد د قتل تعريف علماء داسې کوي : **أن يقصد المكلف الجناية على إنسان معصوم الدم بما لا يقتل عادة، كأن يضربه بعصاً خفيفة، أو حجر صغير، أو يلكزه بيده، أو بسوط، أو نحو ذلك فيصيب منه مقتلاً فيموت من ذلك.**

ترجمه : چې يو مکلف په يو معصوم انسان باندې د جنايت قصد وکوي او پداسې شي سره وربانديې جنايت وکوي چې عادتاً د هغه سره څوک نه وژل کيږي لکه په وړوکې همسا يې ووهي ، په وړوکې تيږه يې وولي ، په سوک يې ووهي ، په کمچينه (دره) يې ووهي او يا بل داسې شي باندې يې ووهي او لدې نه مړ شي دې قتل ته شبه العمد (لکه قصدي) ويل کيږي .

د اتول شيان داسې دي چې په عادي حالتونو کې خلک پدې سره وهل کوي کله يې مطلب د هغه کس ادب وي او کله يې بل مطلب وي خو پدې سره څوک

نه مړ کيږي او کله کله داسې هم کيږي چې له همدې ګذار نه يو کس مړ شي نو څرنګه چې ده اراده د وهلو کړې وه لکن د قتل اراده يې نه وه نو ځکه ورته شبه العمد ويل کيږي .

زمونږ د مذهب په مشهور کتاب البدائع الصنائع کې يې بيا شبه العمد هم تقسيم کړی او ويلي يې دي چې ځينې داسې شبه العمد وي چې پکې اختلاف دی او په ځينې باندې يې اتفاق دی د اول قسم په اړه هلته فرمايي : **أَمَّا الْمُتَّفَقُ عَلَيْهِ فَهُوَ أَنْ يَقْصِدَ الْقَتْلَ بِعَصًا صَغِيرَةٍ أَوْ بِحَجَرٍ صَغِيرٍ أَوْ لَطْمَةٍ، وَنَحْوِ ذَلِكَ مِمَّا لَا يَكُونُ الْغَالِبَ فِيهِ الْهَلَاكُ كَالسَّوْطِ، وَنَحْوِهِ إذَا ضَرَبَ ضَرْبَةً أَوْ ضَرْبَتَيْنِ، وَلَمْ يُوَالِ فِي الضَّرَبَاتِ** . [1]

ترجمه : هرچې متفق عليه دی هغه دادی چې د قتل قصد په يوه وړوکې همسا سره ، يا وړوکې کانړي سره او يا يوې څپېړې سره او يا بل داسې شي سره وشي چې په غالب کې د هغې نه هلاک نه راځي لکه وړوکې دره او يا بل دېته ورته شی چې په هغې سره انسان يو ځل او يا دوه ځله ووهل شي او که چېرته په وړه همسا سره يا دره سره يو څوک ډېر ووهل شي نو دا راتلونکی قسم دی.

او د بل قسم په اړه فرمايي :

**وَأَمَّا الْمُخْتَلَفُ فِيهِ فَهُوَ أَنْ يَضْرِبَ بِالسَّوْطِ الصَّغِيرِ، وَيُوَالِيَ فِي الضَّرَبَاتِ إلَى أَنْ يَمُوتَ، وَهَذَا شِبْهُ عَمْدٍ بِلَا خِلَافٍ بَيْن أَصْحَابِنَا - رَحِمَهُمْ اللَّهُ تَعَالَى - وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ - رَحِمَهُ اللَّهُ - هُوَ عَمْدٌ** . [2]

ترجمه : او هغه چې اختلاف دی پکې هغه دادی چې يو څوک بل څوک په وړوکې دره سره ووهي لکن زيات يې ووهي تردې چې هغه مړ شي دا زمونږ د

---
[1] البدائع الصنائع
[2] بدائع الصنائع

علماوو له نظره په اتفاق سره شبه العمد دی او د امام شافعي د مسلک له مخې دا په عمد کې راځي .

## د شبه العمد صورتونه

شبه العمد لکه په لاندې صورتونو داسې واقع کیږي ..

- په وړوکې همسا یا وړوکې دره یې ووهلو هغه نا ګهانه را غورځېدو او مړ شو .
- د یو کس ښه لامبو زده وه او د لږو اوبو په خوا کې چې په عامه توګه پدې ابو کې یو لامبو وهونکی کس وغورځیږي هغه نه مړ کیږي دا کس یې دې ابو ته ور وغورځولو خو په ده څه چل وشو لامبو یې ونه شوای وهلی او ابو غرق کړو او که ددې کس لامبو نه وه زده بیا چا دې ابو ته ور وغورځولو نو دا قتل عمد دی .
- یو کس چا داسې ابو ته ور وغورځوول چې کمې وي هغه بیا یو دم پرې زیاتې شوې او دا کس مړ شو او که د ابو زیاتېدل یقیني وو نو دا بیا قتل عمد دی .

## په شبه العمد کې د قاتل سزا

په شبه العمد کې قاتل نه وژل کیږي او د قصاص حد وربانديې نه عملي کیږي.

قاتل به کفاره ورکوي یا به یو غلام ازادوي او یا به مسلسلې دوه میاشتې روژه نیسي .

قاتل به د مقتول وارثانو ته دیت ورکوي چې سل اوښان دي او که هغوی دیت ورته معاف کړو بیا به یوازې کفاره ورکړي .

# قتل خطاء (خطايي وژنه)

دا هغه مرګ وي چې د انسان بالکل پکې اراده نه وي او واقع شي علماء يې تعريف داسې کوي : **أن يفعل المكلف ما يباح له فعله، كأن يرمي صيداً، أو يقصد غرضاً، فيصيب إنساناً معصوم الدم فيقتله، أو كان يحفر بئراً، فيتردى فيها إنسان .** [1]

ترجمه : قتل خطاء دا دی چې يو انسان داسې څه وکوي چې ده ته يې کول روا وي لکه د مثال په ډول يو چا ښکار ويشتو او هغه انسان ولګېدو او مړ شو او يا يې کوهی وويستو چې اوبه ترې واخلي په هغه کې انسان وغورځېدو او مړ شو .

او ځينې علماء يې په لنډه توګه داس تعريف کوي : **والخطأ: وهو أن لا يقصد إصابته فيصيبه فيقتله .** [2]

ترجمه : او قتل خطاء دادی چې د لګېدلو اراده يې نه وي او ولګيږي او مړ شي .

امام کاساني په بدائع الصنائع کې قتل خطا هم په دوه ډوله کړی دی هغه مبارک هلته فرمايي : **وَأَمَّا الْقَتْلُ الْخَطَأُ فَالْخَطَأُ قَدْ يَكُونُ فِي نَفْسِ الْفِعْلِ، وَقَدْ يَكُونُ فِي ظَنِّ الْفَاعِلِ أَمَّا الْأَوَّلُ: فَنَحْوُ أَنْ يَقْصِدَ صَيْدًا فَيُصِيبَ آدَمِيًّا، وَأَنْ يَقْصِدَ رَجُلًا فَيُصِيبَ غَيْرَهُ،**

ترجمه : او قتل خطاء هم په دوه ډوله دی يو خطاپه فعل کې وي او لکه خطاء په ګمان د کونکي کې وي اول قسم يې لکه يو څوک اراده وکوي د ويشتلو د يو ښکار لکن ولګيږي ورسره انسان او يا يې اراده وي د يو انسان ولګيږي بل انسان

---

[1] **فقه السنة**

[2] **الكفاية لابن قدامة**

نو دلته په غلطي په نفس فعل کې راغله بیا مخکې فرمايي :

وَأَمَّا الثَّانِي: فَنَحْوَ أَنْ يَرْمِيَ إلَى إنْسَانٍ عَلَى ظَنِّ أَنَّهُ حَرْبِيٌّ أَوْ مُرْتَدٌّ فَإِذَا هُوَ مُسْلِمٌ. [1]

ترجمه : او دوهم (چې انسان په گمان کې غلط شي) هغه دادی چې یو انسان بل انسان قصداً ولي دده گمان وي چې دا کافر دی او هغه مسلمان وي نو دا هم قتل خطاء دی .

## د قتل خطاء سزا

په قتل خطاء کې هم قاتل نه قصاص کيږي .

په قتل خطاء کې به هم د مړي وارثانو ته دیت ورکول کيږي لکن دا مخفف سپک دیت دی سپکوالی يې په دې کې دی چې يوازې قاتل نه بلکه د قاتل کورنۍ او خپلوان به يې ورکوي او که په کومه ډله کې وي هغوی به دده دیت ورکوي او دا دیت هم معجل ضروري نه دی بلکه تر دریو کلونو پورې مهلت پکې دی په ارام سره به يې اداء کړي یوه برخه په اول کال کې دوه برخې په دوهم او دریم کال کې .

او که دیت د مړي کورنۍ معاف کول غوښتل نو د هغوی اختیار دی معاف به يې کړي .

او په قتل خطاء کې دیت په عاقلة باندې ددې امله دی چې پدې کار کې د وژونکي هيڅ جرم نه وو نه يې د هغه وهلو او نه وژلو ته اراده کړې وه خو په اتفاقي ډول سره هغه ووژل شو نو ددې امله ده ته اوس شریعت دومره تکلیف نه ورکوي

[1] بدائع الصنائع

چې دی دیت ورکولو ته مجبور کړي او دیت ورکول خو په کار ددې امله دي چې له کوم کور نه مړی شوی دی د هغوی څه کار پرې وشي او دا د هغوی سره یو ډول همدردي او په څه مشکلاتو کې ورسره مرسته شي نو شریعت دده په عاقله یعني دده په خپلوانو او دده په ډله باندې دا دیت ورکول لازموي.

# قتل عمد (قصداً وژل)

دا هغه قتل دی چې په لویو ګناهونو کې شمار دی تعریف یې مخکې تېر شو همدا هغه قتل دی چې الله او رسول الله ﷺ په کلکه سره ورځخه منع کړېده او همدا هغه قتل دی چې په قاتل باندې قصاص لازموي او په وژلو باندې یې حکم کوي او په لاندې یو څو کرښو کې زه په همدې قتل باندې درسره بحث کوم او بیا به د همدې قتل نه د قصاص د بحث طرف ته ورشو ان شاء الله .

# د زمکې په مخ لمړی قتل

کله چې په زمکه باندې د انسانانو د ژوند شروع وشوه یعني حضرت آدم زمکې ته را ښکته شو نو په ټوله زمکه باندې یو حضرت آدم او یوه حضرت حواء انسانان موجود وو لدې ځای نه د انسانانو ژوند شروع شو الهي نظام داسې وو چې د حضرت حواء به له هر ځل حمل ځخه دوه ماشومان پیدا کېدل یو به ماشوم او بله به ماشومه وه بیا به چې کله دا ځوانان شول نو حضرت آدم به په یو ځل پیدا شوې جینۍ د بل ځل پیدا شوي هلک سره نکاح کوله پدې وخت کې هابیل او قابیل دوه ماشومان په همدې ترتیب پیدا شول له هابیل سره هم یوه ماشومه وه او له قابیل سره هم لکن د هابیل سره چې کومه ماشومه وه هغه دومره ښائسته نه وه لکه د قابیل سره چې کومه وه په هغه وخت کې د موجود قانون له مخې قابیل باید د هغې جینۍ سره واده کړی وای چې هابیل سره جوړه پیدا شوې او هابیل د هغې سره واده کړی وای چې د قابیل سره جوړه پیدا شوې خو قابیل ددې امله چې هغه جینۍ یې خوښه وه چې له ده سره پیدا شوې وه نو دا خبره یې نه منله بلکه ویل یې زه به له همدې خپلې جوړې سره

واده کوم حضرت آدم هم ورته وویل : چې دا ستا حق نه دی ته به دا خور هابیل ته ورکړې او د هغه سره چې کومه پیدا شوې هغه به ته وکوې لکن ده ونه منله د دوی دواړو بحث وو فیصله پدې وشوه چې دواړه به څه صدقه وکوي چې د هرچا صدقه قبوله شوه د هغه خبره به منو او د صدقې د قبول دا نښه وه چې صدقه به په صحرا کې کېښودل شوه که به قبوله وه نو اور به راغلو پورته به یې کړه هابیل د مال خاوند وو او قابیل زمکه ساتله نو هابیل یو ګډ حلال کړو او قابیل څه غله راوړه صدقه یې کړه اور راغلو د هابیل صدقه یې وخوړه او د قابیل یې پرېښوده نو ښکاره شوه چې هابیل په حقه وو پدې نا کامي سره قابیل غصه شو ورور ته یې وویل : زه به تا مړ کړم ولی ستا قبوله او زما قبوله نه شوه؟ هابیل ورته ویل : الله صدقه صرف د هغه کسانو څخه قبلوي چې هغوی تقوی لرونکي وي لدې ورځې نه د قابیل په زړه کې هابیل ته کینه پیدا شوه یوه ورځ چې هابیل د ورځې تر ناوخته پورې د خپل مال څرولو ته را ونه وتلو نو حضرت آدم قابیل ور ولېږلو چې دی هلته ورغلو هلته یې ورته وویل : هغه ستا صدقه قبوله شوه او زما قبوله نه شوه ... هابیل ورته وویل : **إنما یتقبل الله من المتقین** (الله یې له هغه کسانو څخه قبلوي چې تقوی لرونکي وي) پدې ورځ یې غصه نوره هم ورته زیاته شوه او بیا یې د مرګ اخطار ورکړو لکن هغه ورته وویل : که ته ما مړ کول هم وغواړې زه ستا د وژلو کوښښ نه کوم بله ورځ ورغلو هغه ویده وو یوه لویه ډبره یې ورته پورته کړه هغه یې په سر پرې وویشت سر یې پرې مات کړو او لدې سره هغه وفات شو او د یو روایت له مخې چې په مری یې ورته زور وکولو او مړ یې کړو خو اوس به یې په جسد څه کوي؟ ددې څه طریقه ورته نه وه معلومه نو جسد به یې له ځان سره ګرځولو چېرته به چې تلو هغه به ورسره

وو تردې چې د هغه بدن بوی وکولو او د هوا مارغانو انتظار کاوه چې دی تری لرې شي مونږ به يې وخورو دده دا هم نه لوريده چې دا جسد اوس مارغانو ته ورکړي چې هغوی يې وخوري او نور يې له ګرځولو نه هم ستړی وو او د ځان خلاصولو چل يې نه وو زده او داسې يې هم نشوای کولی چې خپل پلار حضرت آدم ته يې ورووړي او هغه پرې خبر کړي له هغه نه پکې مشوره واخلي چې پدې څه وکوي ... بيا يې وليدل چې دوه کارغان راغلل يو پاڅېدو هغه بل کارغه يې مړ کړو بيا يې زمکه ورته را ژوره کړه او دی يې پکې کېښود او خاورې يې پرې ور واړولې دی زيات خفه شو چې دا دومره وخت مې ولې په شا ګرځولو زما سره دومره عقل هم نه وو چې دا کار مې ورسره کړی وای بيا ده هم زمکه ژوره کړه او هغه يې پکې خښ کړو دا قصه الله مونږ ته په قرآن کريم کې داسې کوي:

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِن أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الآخَرِ قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ (٢٧) لَئِن بَسَطتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَا أَنَاْ بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لَأَقْتُلَكَ إِنِّي أَخَافُ اللّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ (٢٨) إِنِّي أُرِيدُ أَن تَبُوءَ بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ وَذَلِكَ جَزَاء الظَّالِمِينَ (٢٩) فَطَوَّعَتْ لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُ فَأَصْبَحَ مِنَ الْخَاسِرِينَ (٣٠) فَبَعَثَ اللّهُ غُرَابًا يَبْحَثُ فِي الأَرْضِ لِيُرِيَهُ كَيْفَ يُوَارِي سَوْءةَ أَخِيهِ قَالَ يَا وَيْلَتَا أَعَجَزْتُ أَنْ أَكُونَ مِثْلَ هَذَا الْغُرَابِ فَأُوَارِيَ سَوْءةَ أَخِي فَأَصْبَحَ مِنَ النَّادِمِينَ (٣١) .[1]

ترجمه : او ولوله (اې محمده!) پر دغو (بني اسرائيلو يا پر قوم خپل) خبر د دواړو زامنو د آدم (چې هابيل او قابيل وو) په حقه سره کله چې نژدې کړه دواړو قرباني (د پسه او د غنمو الله ته) نو قبول کړ شو (پسه) له يوه د دې

[1] سورة المائدة

دوارو نه (چې هابیل ؤ) او قبوله نشوه (د غنمو) له بله (چې قابیل ؤ) وویل (قابیل) چې خامخا به ووژنم تا (اې هابیله!) وویل (هابیل قابیل ته) چې بېشکه هم دا خبره ده چې قبلوي الله (قرباني) له پرهېزګارانو نه قسم دی خامخا که د را وغځاوه تا (اې قابیله) ماته لاس خپل د پاره د دې چې ته ووژنې ما نو نه یم زه غزوونکی د لاس خپل تاته چې ووژنم تا بېشکه زه وېرېږم له الله چې رب (پالونکی د ټولو) عالمیانو دی په تحقیق زه اراده لرم د دې چې رجوع وکړې (اخته شې) ته په ګناه د (وژلو) زما او په ګناه خپلې (چې پخوا د کړې ده) نو شې به ته له صاحبانو (ملګریو) د اور (د دوزخ) او هم دا (اور) دی جزا د ظالمانو (چې په ناحقه وینې تویوي) نو ښائسته کړ دغه (اماره) نفس د ده وژل د ورور د ده (چې هابیل ؤ) بیا وواژه (قابیل) دغه (هابیل) نو وګرځېد (قابیل په دنیا او عقبی کې په سبب د قتل د هابیل ) له زیان کارانو نو ولېږه الله یو کارغه چې ژورول یې کول په زمکه کې (په مښوکه او پنجو خپلو سره) له پاره د دې چې و ښیي دغه (قابیل) ته چې څرنګه پټه کړي جثه د ورور (هابیل) وویل (قابیل) اې افسوسه زما راشه دغه د وخت دی (یعني افسوس دی ماته) آیا عاجز وم زه له دې چې کیدی په شان د دې کارغه (په پوهه کې) نو پټه کړی به مې وه جثه د ورور خپل نو وګرځېد (قابیل په دې قتل د هابیل سره او یا دومره وخت په شا د ګرځولو د ورور د جثې) له پښېمانې کوونکو څخه .

پدې قتل سره په دنیا کې د قتل شروع وشوه او دا په دنیا کې اول قتل وو او څوک چې د کومې ګناه بنیاد کیږدي نو له ده نه وروسته چې څومره خلک هغه ګناه کوي نو ده ته به پکې ګناه رسیږي نو ددې قتل په اړه هم حضرت عبد الله بن

مسعود فرمايي : رسول الله ﷺ فرمايل : لَا تُقْتَلُ نَفْسٌ ظُلْمًا إِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ آدَمَ الْأَوَّلِ كِفْلٌ مِنْ دَمِهَا؛ وَذَلِكَ لِأَنَّهُ أَوَّلُ مَنْ سَنَّ الْقَتْلَ. [1]

ترجمه : چېرته چې په ظلم سره مرګ کيږي د آدم په اول زوی باندې د هغه قتل هم يوه ګناه وي ځکه اول شروع ددې ګناه همده کړېده .

## د قتل حرمت په قرآن کريم کې

الله امر کړی دی چې خپل ځانونه مه وژنئ

الله فرمايي :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلاَّ أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ وَلاَ تَقْتُلُواْ أَنفُسَكُمْ إِنَّ اللّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا (29) . [2]

ترجمه : اې هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی (يعني اې مؤمنانو!) مه خورئ تاسې مالونه د يو بل په مينځونو خپلوکې په ناروا سره مګر (خورئ يې) که وي دا (مالونه چې خورئ يې اموال د) تجارت (چې صادروي) په خوښي سره له تاسو نه او مه وژنئ تاسې سره ځانونه خپل (يعني يو له بل يا مه کوئ تاسې هغه کار چې ستاسې د هلاکت سبب وي) بېشکه چې الله دی پر تاسې باندې ډېر مهربان (د اجر او ثواب په انعام سره) .

په بل ځای کې الله فرمايي :

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَن يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلاَّ خَطَئًا وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَئًا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ إِلاَّ أَن يَصَّدَّقُواْ فَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ

---

[1] صحيح البخاري و مسلم
[2] سورة النساء

عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مْؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةً فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ اللّهِ وَكَانَ اللّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا (92)
وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا (93) .[1]

ترجمه : او نه ښايي (يا نه دى روا) هېڅ مؤمن ته (يا نه دى د مؤمن كار) دا چې مړ كړي (بل) مؤمن مگر په خطا سره او هرڅوك چې مړكړي كوم مؤمن په خطا سره نو (شته پر قاتل) ازادول د غاړې د (مريي) مؤمن او (بل) ديت دى سپارلى شوى اهل (وارثانو) د مقتول ته مگر دا كه معاف كړي دا (وارثان دغه قاتل) پس كه ؤ (دا مقتول) له (هسې) قومه چې دښمن وي تاسې لره حال دا چې دا (مقتول) مؤمن وي نو (شته پر قاتل يو) ديت ور سپارلى شوى اهل (وارثانو) د مقتول ته او ((بل)) ازادول د غاړې (د مريي) مؤمن دي پس هرڅوك چې ونه مومي (مريى يا مال چې پرې مريى واخلي) نو (پرې) روژه نيول د دوو مياشتو دي پر له پسې (بلا انقطاع د پاره د قبلولو د) توبې له (جانبه د) الله او دى الله ښه عالم (په ټولو احوالو) لوى حكمت واله (چې هر كار په حكمت او مصلحت سره كوي او هرڅوك چې مړ كړي كوم مؤمن په قصد سره (او د مسلمان دغه قتل روا هم وگڼي) نو جزا د ده دوزخ دى (په داسې حال كې) چې تل به وي دى (دغه حلال گڼونكى د قتل) په هغه ((دوزخ)) كې او غضب (قهر) كړى دى الله په ده باندې او لرې كړى دى (الله ) دا قاتل له خپل رحمت څخه او تيار كړى ئې دى ده ته عذاب ډېر لوى .

په بل ځاى كې الله فرمايي :

---

[1] سورة النساء

**مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ كَتَبْنَا عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ أَنَّهُ مَن قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا وَلَقَدْ جَاء تْهُمْ رُسُلُنَا بِالبَيِّنَاتِ ثُمَّ إِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم بَعْدَ ذَلِكَ فِي الأَرْضِ لَمُسْرِفُونَ (32).** [1]

ترجمه : په سبب ددې (قتل د قابيل هابيل لره) ليکلى وو (حکم کړى ؤ) مونږ پر بني اسرائيلو (اولاده د يعقوب) چې بېشکه شان دا دى چې هرڅوک ووژني يو نفس بې له (عوض، بدل د) بل نفس (يا بې) له فساده په زمکه کې (چې په ملک کې يې فساد کړى وي) نو ګواکي وژلي يې دي خلق ټول او هر چا چې ژوندى کړو دغه (يو نفس چې سبب شي د ژوندون يې) نو ګواکي ژوندي کړي يې دي خلق ټول .

په بل ځاى کې فرمايي :

**وَلاَ تَقْتُلُواْ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّهُ إِلاَّ بِالحَقِّ وَمَن قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَانًا فَلاَ يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ إِنَّهُ كَانَ مَنْصُورًا .** [2]

ترجمه : او مه وژنئ تاسې نفس هغه چې حرام کړى دى الله (وژل د هغه) مګر په حقه سره (چې ارتداد او زناء مع الاحصان او قصاص دى) او هرڅوک چې ووژل شو په دې حال چې مظلوم وي نو په تحقيق ګرځولى دى مونږ د پاره د وارث د هغه زور (او قوت چې له قاتل څخه انتقام اخيستى شي) نو اسراف دې نه کوي په قتل کې (چې غير حق بل څوک وژني بې له قاتله) په تحقيق دغه (وارث) دى مدد ورسره کړل شوى .

په بل ځاى کې الله فرمايي :

---

1 سورة المائدة
2 سورة الاسراء آية ٣٣

قُلْ تَعَالَوْاْ أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ أَلاَّ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَلاَ تَقْتُلُواْ أَوْلاَدَكُم مِّنْ إمْلاَقٍ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ وَلاَ تَقْرَبُواْ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلاَ تَقْتُلُواْ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّهُ إِلاَّ بِالْحَقِّ ذَلِكُمْ وَصَّاكُمْ بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ (151) . [1]

ترجمه : ووايه (اې محمده! دوى ته) چې راشئ ! چې زه ولولم (در واوروم) هغه چې حرام كړي دي رب ستاسې پر تاسې باندې چې شريكان مه نيسئ تاسې له دغه (الله ) سره هېڅ شى او (نيكي كوئ تاسې) له مور او پلار سره په نيكي كولو سره او مه وژنئ تاسې اولاد خپل (له وېرې د فقر او) خواري نه مونږ رزق (روزي) دركوو تاسې ته او هم دوى ته او مه نژدې كېږئ فواحشو (بې حيائي ، ناكارو كارونو) ته هغه چې ښكاره وي له دې (فواحشو) او هغه چې پټ وي او مه وژنئ تاسې نفس هغه چې حرام كړى دى الله (وژل ئې) مگر (وژنئ ئې) په حقه سره دا (څلور نهى او يو امر) حكم كړى دى الله تاسې ته په دې سره له پاره د دې چې عقل وچلوئ (پكې) تاسې.

په بل ځاى كې الله فرمايي : وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ يَلْقَ أَثَامًا . يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا . [2]

ترجمه : او (بندگان د رحمن) هغه كسان دي چې نه بولي سره له الله معبود بل او نه وژني دوى نفس هغه چې حرام كړى دى الله (وژل د هغه) مگر په حق سره او هر چا چې وكړه (يو له دغو دريو امهات الذنوب نه) نو ملاقات به وكړي و به ويني جزاء د گناه خپلې چې دوه چند به كړل شي ده ته عذاب ( د دوزخ) په ورځ د قيامت كې او تل به

[1] سورة الانعام آية ١٥١
[2] سورة الفرقان آية ٦٨ او ٦٩

پاتې وي په دغه (عذاب) کې په دې حال چې خوار ذليل بې اعتبار به وي.

په قرآن کريم کې چې قتل ته کوم عذاب او کومه سزا ياده کړل شوېده دا بلې کومې ګناه ته نه ده ياده کړل شوې لکه الله چې فرمايي : **وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا .** [1]

ترجمه : او هر څوک چې مړ کړي کوم مؤمن په قصد سره (او د مسلمان دغه قتل روا هم وګڼي) نو جزا د ده دوزخ دی (په داسې حال کې) چې تل به وي دی (دغه حلال ګڼونکی د قتل) په هغه ((دوزخ)) کې او غضب (قهر) کړی دی الله په ده باندې او لرې کړی دی (الله ) دا (قاتل) له خپل رحمت څخه او تيار کړی دی ده ته عذاب ډېر لوی .

ځينې خلکو به خپل اولادونه قتل کول الله د هغوی په اړه فرمايي :

**قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ قَتَلُواْ أَوْلاَدَهُمْ سَفَهًا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَحَرَّمُواْ مَا رَزَقَهُمُ اللّهُ افْتِرَاء عَلَى اللّهِ قَدْ ضَلُّواْ وَمَا كَانُواْ مُهْتَدِينَ (140) .** [2]

ترجمة : بېشکه زيان کړی دی هغو کسانو چې وژلی ئې دی اولاد خپل له جهته د بې عقلي بې له پوهې او حرام کړي ئې دي هغه شيونه چې رزق (روزي) ورکړي دي دوی ته الله له جهته د دروغ تړلو پر الله پورې بېشکه ګمراهان شوي دي دوی او نه دي دوی لاره موندونکي (حق ته) .

په بل ځای کې الله فرمايي :

---

[1] سورة النساء آية ٩٣
[2] سورة الانعام

وَلاَ تَقْتُلُواْ أَوْلادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلاقٍ نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُم إنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خطأً كَبِيرًا .[1]

ترجمة : او مه وژنئ تاسې اولاد خپل د وېرې د فقره (او فاقه خپله چې که ډېر شي نو روزي به را باندې تنګه کړي) ځکه چې هم دا مونږ روزي ورکوو دوی ته او تاسې ته هم بېشکه چې قتل د دوی ده خطاء (ګناه) لویه (چې د نسل او د نوع قطع ده) .

## قتل په احادیثو کې

## د قتل سره د دین لپاره سینه تنګیږي

رسول الله ﷺ فرمایي :

لا يزالُ المؤمنُ في فسحةٍ من دينِه، ما لم يصبْ دمًا حرامًا .[2]

ترجمه : مؤمن هر وخت د خپل دین نه په فراخي کې دی ترڅو چې حرامې وینې ته نه وي رسېدلی (قتل یې نه وي کړی) یعني ترڅو چې مؤمن نا حق قتل نه وي کړی او د چا وینه یې په ناحقه سره نه وي تویې کړې نو دده سینه د ایمان لپاره او د دین لپاره فراخه وي او کله چې په قتلونو باندې را واوړي نو دده سینه د ایمان او دین لپاره تنګه شي چې بیا اکثر دین او ایمان د تنګوالي له امله دده له سینې څخه بهر شي او دی کافر له دنیا تېر شي (نعوذ بالله) .

---

[1] سورة الاسراء آية ٣١
[2] صحيح البخاري

## قتل لکه شرک داسې لویه ګناه ده

رسول الله ﷺ فرمايي :

كلُّ ذنبٍ عسى اللهُ أن يغفرَه؛ إلا الرجلَ يموتُ مشركًا، أو يَقتلُ مؤمنًا متعمِّدًا .[1]

ترجمه : هره ګناه کېدای شي الله و بښي مګر هغه چې يو کس مشرک مړ شي او يا کوم مؤمن قصداً قتل کړي .

مخکې په يو آيت کې هم تېر شول هلته په مقدمه کې مونږ ياده کړه چې دا هم د قتل د ګناه په لوی والي باندې دلالت کوي چې په ډېرو ځايونو کې له شرک سره کومه چې نه معاف کېدونکې ګناه ده (الله د مونږ ورځخه وساتي) سره يو ځای ذکر شوېده پدې حديث کې هم هغه کس چې قتل وکوي د هغه کس سره په يو ځای ياد کړل شوی دی چې هغه د شرک په حالت کې مړ شي .

## د مسلمان مرګ نه دی روا

رسول الله ﷺ فرمايي :

لا يحلُّ دمُ امرئٍ مسلمٍ، يشهدُ أن لا إلهَ إلا اللهُ وأني رسولُ اللهِ، إلا بإحدى ثلاثٍ:النفسُ بالنفسِ، والثيبُ الزاني، والمفارقُ لدِينِه التاركُ للجماعةِ .[2]

ترجمه : د يو مسلمان سړي چې ددې ګواهي ورکوي چې د الله نه سوا بل په حقه معبود نشته او دا

---

1 صحيح الترغيب برقم 2446
2 متفق عليه

چې زه د الله رسول يم مرګ په هېڅ شي نه روا کيږي مګر په يو د دريو شيانو سره يا دا چې النفس بالنفس معامله راشي ده څوک قتل کړي وي اوس دی قتل کيږي او بل له واده نه وروسته يې زنا کړې وي او بل چې له خپل دين څخه آوښتی وي يعني مرتد شوی وي او د مؤمنانو جماعت يې پرېښی وي په بله لاره روان شوی وي .

همدا مضمون رسول الله ﷺ په بل ځای کې هم فرمايي :

**لا يحل دم امرئ مسلم إلا بإحدى ثلاث: رجل زنى بعد إحصان أو ارتد بعد إسلام أو قتل نفسا بغير حق فيقتل به .** [1]

ترجمه : د يو مسلمان مرګ نه دی روا مګر په يو د دريو شيانو سره له واده نه وروسته زنا ، له اسلام نه وروسته بېرته مرتد کېدل او يا دا چې په ناروا سره د بل چا مرګ وکوي نو بيا به دی هم قتل کيږي .

## قاتل د الله بد ايسي

رسول الله ﷺ فرمايي :

**أبغض الناس إلى الله ثلاثة: ملحد في الحرم و مبتغ في الإسلام سنة الجاهلية و مطلب دم امرئ بغير حق ليهريق دمه .** [2]

ترجمه : د الله دری کسان ډېر بد ايسي هغه چې په حرم کې د الحاد او کفر کارونه کوي هغه چې په اسلام کې د جاهليت رواجونه کوي او هغه چې د

1 صحيح الجامع برقم 7641
2 صحيح البخاري

يو كس په مرګ پسې ګرځي ترڅو د هغه وينه تويه کړي .

## مسلمان ته ښکنځلې هم ګناه ده

رسول الله ﷺ نه يوازې د يو مسلمان له قتل څخه مونږ منع کوي بلکه هغه ته له ښکنځلو څخه هم مونږ منع کوي نو چې يو مسلمان ته ښکنځل دومره لويه خبره وي که ددېنه وروسته مونږ ته څوک بله خبره ونه کوي هم مونږ ته معلوميږي چې وژل به يې څومره لويه ګناه وي .

رسول الله ﷺ فرمايي :

سبابُ المسلمِ فسوقٌ، وقتالُه كفرٌ . [1]

ترجمه : يو مسلمان ته ښکنځل کول فسق او ګناه ده او د هغه وژل کفر دی (که څوک يې حلال و ګڼي)

## بې ګناه وژل الله ته ډېر لوی شی دی

لکه مخکې چې تېر شول الله د انسان په بې ګناه وژنه باندې ډېر زيات خفه کيږي او دا په دنيا کې انسانان د الله بندګان دي او الله د خپلو بندګانو سره ډېره مينه کوي او چې څوک معصوم ووژل شي الله پرې خفه کيږي او غصه کيږي او زمونږ په مخکنيو کتابونو باندې پدې خبره بحث شوی دی چې الله په انسان باندې په دنيا کې څومره سخت احکام نازل کړي دي او هغه يې ددې کارونو په کولو مکلف کړی دی دا ټول د الله رحمت دی او په احاديثو کې راغلي چې يو بنده الله ته

---

[1] متفق عليه

له خپلو ګناهونو څخه توبه وباسي الله ورته زيات خوشحاليږي ددې لپاره نه چې الله د بنده توبې ته ضرورت لري بلکه ددې لپاره چې الله نه خوښوي چې دا بنده د همدې ګناه په حالت کې مړ شي او بيا په آخرت کې د اور مستحق شي نو چې الله له بنده سره دومره مينه کوي نو خامخا به د هغه په قتل او وژنه باندې خفه کيږي رسول الله ﷺ فرمايي :

**لزوالُ الدُّنيا أهونُ على اللهِ من قتلِ مؤمنٍ بغيرِ حقٍّ .** [1]

ترجمه : د ټولې دنيا زائل کېدل د الله په وړاندې وړه خبره ده لدې نه چې يو مؤمن بې ګناه وژل کيږي .

او په بل حديث کې همدا مضمون دى هلته د مؤمن په ځاى د مسلم لفظ ياد کړل شوى دى رسول الله ﷺ فرمايي :

**لزوالُ الدنيا أهونُ على اللهِ منْ قَتْلِ رجلٍ مسلمٍ .** [2]

ترجمه : بېشکه د دنيا زوال په الله باندې لدېنه اسان دى چې يو مسلمان سړى وژل کيږي .

په بل ځاى کې همدا مضمون راغلى دى او هلته يې وينه تويېدل ياد کړي دي رسول الله ﷺ فرمايي :
**لَزَوَالُ الدنيا جَمِيعًا؛ أَهْوَنُ على اللهِ من دَمٍ يُسْفَكُ بغيرِ حقٍّ .** [3]

ترجمه : بېشکه د ټولې دنيا زوال په الله باندې لدې نه سپک دى چې يوه وينه بېغير د حق نه توئيږي .

1 صحيح الجامع برقم **5078**
2 صحيح الجامع برقم **5077**
3 صحيح الترغيب برقم **2438**

په بل حديث کې همدا مضمون او الفاظ يې بدل دي رسول الله ﷺ فرمايي :

قتل المؤمن أعظم عند الله من زوال الدنيا .[1]

ترجمه : د مؤمن وژل د الله په وړاندې د ټولې دنيا له زوال نه لوى دي .

## د رسول الله ﷺ وصيت

په يو حديث کې رسول الله ﷺ وصيت کړى دى او په سختو ټکو کې يې د قتل نه منع کړې ده رسول الله ﷺ د لوى اختر په ورځ خطبه ويله او ويې فرمايل :

يا أيُّها الناسُ أيُّ يومٍ هذا؟. قالوا: يومٌ حَرامٌ، قال: فأيُّ بلدٍ هذا؟. قالوا: بلدٌ حَرامٌ، قال: فأيُّ شهرٍ هذا؟. قالوا: شهرٌ حَرامٌ، قال: فإنَّ دماءَكم وأموالَكم وأعراضَكم عليكم حرامٌ، كحُرمةِيومِكم هذا، في بلدِكم هذا، في شهرِكم هذا. فأعادَها مِرارًا، ثم رفَع رأسَه فقال: اللهمَّ هل بلَّغتُ؟، اللهمَّ هل بلَّغتُ؟. قال ابنُ عباسٍ رضي اللهُ عنهما: فوالذي نفسي بيدِه، إنها لوَصيَّتُه إلى أُمَّتِه: فلْيُبَلِّغِ الشاهدُ الغائبَ، لا تَرجِعوا بعدي كفارًا، يَضرِبُ بعضُكم رِقابَ بعضٍ .[2]

ترجمه : اى خلکو نن څه ورځ ده؟ دوى ورته وويل د حرام ورځ ده بيا يې پوښتنه وکوله دا کوم ښار دى صحابه وو ورته وويل دا بلد حرام دى بيا يې پوښتنه وکوله دا کومه مياشت ده ؟ دوى ورته وويل د حرام مياشت ده بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : بېشکه ستاسې وينې ، ستاسې

---

[1] صحيح الترغيب برقم 2440
[2] متفق عليه

مالونه او ستاسې عزتونه په تاسې باندې حرام دي (یعني په تاسې باندې حرام دي چې د یو بل وینه تویه کړئ یا د یو بل عزتونه او مالونه لوټ کړئ) داسې دربانديې حرام دي لکه ستاسې پدې ښار کې پدې میاشت کې ددې ورځې حرمت بیا بیا رسول الله ﷺ دا خبره تکرار کړه بیا یې سر پورته کړو او ویې ویل : ای الله آیا ما دا خبره ورسوله؟ ای الله آیا ما دا خبره ورسوله؟ حضرت ابن عباس فرمایي : زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی چې دا امت ته د رسول الله ﷺ وصیت دی هغه کسان چې حاضر دي هغه کسانو ته د دا خبره ورسوي چې هغوی حاضر نه دي زما نه وروسته له ځانونو څخه کفار مه جوړوئ چې ځینې ستاسې به د ځینې نورو غاړې وهي (یو بل به نه قتلوئ) .

# د قيامت په ورځ اول فيصله د وينو كيږي

كله چې د قيامت ورځ حسابونه شروع شي د هغه وخت په اړه رسول الله ﷺ فرمايي چې اول فيصلې به د وينو كيږي چا چې د چا وينه تويه كړې وي اول به د هغوى په مينځ كې فيصله كيږي رسول الله ﷺ فرمايي :

أوّلُ ما يُقضَى بينَ الناسِ يومَ القيامةِ، في الدِّمَاءِ .[1]

ترجمه : اول هغه څه چې د قيامت په ورځ به فيصلې پكې كيږي هغه به وينې وي .

مقتول به له الله نه خپل حق غواړي

د قيامت په ورځ چې هر حالت يې سخت وي او هره لحظه يې مشكلات وي د هغه كسانو لپاره چې قتلونه يې كړي وي نوره هم سختي وي چې كله مقتول راشي او قاتل تر لاس نيولى د الله حضور ته ورولي او له الله نه وغواړي چې اوس د له خپل بنده نه پوښتنه وكوه چې زه يې ولې وژلى وم رسول الله ﷺ فرمايي :

ثَكِلَتْهُ أمُّه رجلٌ قتلَ رجلًا متعمدًا يَجيءُ يومَ القيامةِ آخذًا قاتلَه بيمينِه أو بيسارِه وآخذًا رأسَهُ بيمينِهِ أو شمالِهِ تَشْخُبُ أوْداجُهُ دمًا في قبلِ العرشِ يقولُ: يا ربِّ سَلْ عبدَكَ فيمَ قتَلَني .[2]

ترجمه : مور د پرې بوره شي يو سړي چې بل څوك قصداً وژلي وي د قيامت په ورځ به راوستل شي

---

[1] متفق عليه
[2] أخرجه أحمد في مسنده

خپل قاتل به یې تر شي یا تر چپ لاس نیولی وي او خپل سر به یې په ښي یا په چپ لاس کې نیولی وي (په یوه لاس کې به یې قاتل نیولی وي او په بل لاس کې به یې سر نیولی وي له رګونو به یې وینې څي وبه وایي : ای ربه لدې خپل بنده څخه پوښتنه وکوه چې زه یې ولې وژلی وم؟ .

همدا پورتنی مضمون په یو بل حدیث کې داسې راغلی دی رسول الله ﷺ فرمایي : **يَجِيءُ المقتولُ بالقاتلِ يومَ القيامةِ ناصِيَتُه ورأسُه بيدِه وأوداجُه تَشْخَبُ دَمًا، فيقولُ: يا رَبِّ! سَلْ هذا فِيمَ قتلني؟ حتى يُدْنِيَهُ من العرشِ .** [1]

ترجمة : مقتول به د قیامت په ورځ قاتل راولي او سر به یې په لاس کې وي له رګونو به یې وینې څي وبه وایي یا ربه له ده څخه پوښتنه وکوه چې زه یې ولې وژلی وم؟ په همدې ډول به الله ته دا خبره کوي تردې چې دا کس عرش ته را نیږدې کړي .

## که چا د الله لپاره قتل کړی وي هغه به خلاص وي

رسول الله ﷺ فرمایي چې په قیامت کې به ځینې خلک په چا باندې دعوه وکوي چې دې زه قتل کړی وم لکن قاتل به ووایي چې دا ما ددې لپاره قتل کړی وو ربه چې عزت تا لره شي نو هغه به هلته بري کړل شي (او د قیامت په ورځ د الله سره هېڅوک په درواغو دعوه نشي کولی) رسول الله ﷺ فرمایي : **يجيءُ الرجلُ آخذًا بيدِ الرَّجلِ، فيقولُ: يا ربِّ! هذا قتلَني، فيقولُ اللهُ لَهُ: لم قتَلْتَهُ؟ فيقولُ: قتَلْتُهُ لتكونَ العزَّةُ لكَ، فيقولُ:**

---

[1] **صحیح الجامع برقم 8031**

**فإِنَّها لِي، ويجيءُ الرجلُ آخذًا بيدِ الرجلِ، فيقولُ: أيْ ربِّ! إِنَّ هذا قتلَني، فيقولُ اللهُ: لم قتلْتَهُ؟ فيقولُ: لِتكونَ العزَّةُ لفلانٍ! فيقولُ: إِنَّها ليستْ لفلانٍ، فيبوءُ بإثمِهِ .** [1]

ترجمة : يو سړي به راشي چې تر لاس به يې بل سړى نيولى وي وبه وايي اې ربه دې زه قتل كړم الله به ورته ووايي : دا د ولې قتل كړو؟ دى به ورته ووايي ما ددې لپاره قتل كړو چې عزت تا لره شي (دا ما ستا لپاره قتل كړو) الله به ووايي هو عزت ما لره دى او بل سړى به راشي چې بل سړى به يې تر لاس نيولى وي وبه وايي اى الله دې زه ووژلم الله به ورته ووايي دا تا ولې ووژلو؟ هغه به ووايي دا ما ووژلو چې عزت فلاني سړي لره شي (د فلاني سړي لپاره مې ووژلو) الله به ورته ووايي عزت د فلاني لپاره نشته نو پدې گناه به هغه ونيول شي .

## د امان نه وروسته قتل لوى جرم دى

كله چې دوه كسان په خپل مينځ كې صلح وكوي او بيا يو په دوى كې پاخيږي او هغه مخالف لورى په دوكه كې قتل كړي او يا يو مسلمان يو كافر ته امان وركړي او له امان نه وروسته يې بيا قتل كړي نو دا لويه گناه ده ځكه اسلام پاک دين دى دوكه په هيڅ شكل او هيڅ ډول او هيڅ صورت كې نه قبلوي رسول الله ﷺ فرمايي : **أيما رجلٍ أمَّن رجلًا على دمِه ثم قتله؛ فأنا من القاتلِ بريءٌ، وإن كان المقتولُ كافرًا** [2] .

---

[1] صحيح الجامع برقم **8029**
[2] صحيح الترغيب

ترجمه : کوم سړي چې بل چا ته د هغه د وينې امان ورکړو او بيا يې قتل کړو زه له قاتل نه بيزار يم اګر که هغه مقتول کافر هم وي .

## قتل يو عذاب دى

رسول الله ﷺ قتل ته په دنيا کې ددې امت عذاب ويلي دي رسول الله ﷺ فرمايي : **إن الله تعالى جعل عذاب هذه الأمة في الدنيا القتل** .[1]

ترجمة : بېشکه الله ګرځولى دى عذاب ددې امت په دنيا کې قتل .

همدارنګه په بل حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي : **أمتي هذه أمة مرحومة ليس عليها عذاب في الآخرة إنما عذابها في الدنيا الفتن و الزلازل و القتل و البلايا** .[2]

ترجمة : دا زما امت داسې امت دى چې په دوى باندې رحم شوى دى په دوى باندې په آخرت کې عذاب نشته او په دنيا کې يې عذاب فتنې دي ، زلزلې دي ، وژنه ده او بلاګانې دي .

همدارنګه هغه کس چې د هغه سره د صلح تعهد وشي او هغه ته په ذهن کې داسې ورکړل شي چې هغه ا وس په امن کې دى او ددې تعهد نه وروسته وژل هم ډېر لوى جرم دى او رسول الله ﷺ فرمايي داسې قاتل خو د جنت بوى هم نه شي بوى کولى رسول الله

---

1 صحيح الجامع
2 صحيح أبي داود

ﷺ فرمايي : **من قتل مُعاهَدًا لم يَرَحْ رائحةَ الجنَّةِ، وإنَّ ريحَها توجدُ من مسيرةِ أربعين عامًا** .[1]

ترجمة : چا چې معاهد (هغه چې تعهد ورسره شوی وو چې هغه به نه وژل کيږي) ووژلو هغه د جنت بوی هم نشي بوی کولی او د جنت بوی د څلوېښتو کلونو په مسافه کې بوی کول کيږي .

همدا رنګه په بل حديث کې هم همدا مضمون دی رسول الله ﷺ فرمايي : **مَنْ قَتَلَ نفسًا مُعاهَدةً بغيرِ حِلِّها، حرَّمَ اللهُ عليه الجنةَ: أنْ يَشُمَّ رِيحَها** .[2]

ترجمة : چا چې يو معاهد نفس (چې د امن او صلح تعهد ورسره شوی وو) مړ کړو مخکې لدې چې هغه تعهد د دواړو خواوو په خبر تيا او علم سره پرانېستل شي نو الله په هغه باندې حرام کړي چې هغه د جنت بوی محسوس کړي .

په بل حديث کې هم د دوکې د قتل نه سخته منع شوېده او څوک چې دا ډول قتل کوي نو په قيامت کې به د هغه په خوا کې د غدر لويه جنډه ولاړه وي او هرڅوک به يې پيژني چې ده په دنيا کې له چا سره لويه دوکه کړېده رسول اللهﷺ فرمايي : **إذا اطمأنَّ الرجلُ إلى الرجلِ ثم قتله بعدما اطمأنَّ إليه، نُصِبَ له يومَ القيامةِ لواءُ غَدرٍ** .[3]

ترجمة : کله چې يو کس په بل باندې مطمئن شي او د هغه د اطمنان نه وروسته يې دا بل کس قتل کړي نو د قيامت په ورځ باندې به دې کس ته د غدر (خيانت) بيرغ ولګول شي .

---

[1] صحيح البخاري

[2] صحيح الجامع برقم 6458

[3] صحيح الجامع برقم 357

# يو ورغوى وينه هم انسان له جنت نه محروم كولى شي

رسول الله ﷺ مونږ ته نصيحت كوي چې د خپل ځان او د جنت په مينځ كې مانع مه پيدا كوئ او لدې نه ځان وساتئ چې ستاسې او د جنت په مينځ كې دې څه مانع پيدا شي رسول الله ﷺ فرمايي : **مَنِ استطاع أن لا يُحالَ بينَه وبينَ الجنةِ بمِلءِ كفٍّ من دمٍ أهْراقَه فليفعَلْ** .[1]

ترجمة : كه د چا په وس وه چې د خپل ځان او جنت په مينځ كې دې يو ورغوى وينه مانع پيدا نه كړي نو ود كوي (يعني ځان د لدې وساتي چې دده او د جنت په مينځ كې يو ورغوى وينه چې دى يې له چا څخه په ناروا سره تويوي مانع شي ) .

همدارنګه په بل حديث كې هم رسول الله ﷺ دا خبره ښكاره كړيده چې انسان كله جنت ته ننوزي نو هلته يو ورغوى وينه چې ده په ناروا تويه كړې وي جنت ته دده له ننوتلو مانع كېدلى شي رسول الله ﷺ فرمايي : **من استطاع منكم أن لا يحول بينه وبين الجنة ملء كف من دم امرىء مسلم أن يهريقه كما يذبح به دجاجة كلما تعرض لباب من أبواب الجنة حال الله بينه وبينه** .[2]

ترجمة : كه په تاسې كې څوک كولى شي چې دده او جنت په مينځ كې دې يو ورغوى وينه د يو مسلمان ورور چې ده تويه كړې وي چې دومره وي لكه يو چرګه چې حلال شي څومره وينه ترې ځي مانع نه كړي (نو و د كوي) كله چې دى د جنت كومې دروازې ته ورشي نو الله به (د هغه وينې له امله) دده او د جنت په مينځ كې مانع شي .

---

[1] **صحيح البخاري**
[2] **صحيح الترغيب برقم 244**

# د مسلمان په ساتنه کې کوښښ کول

په قصدي طور خو ډېره لویه خبره ده رسول الله ﷺ مونږ ته نصیحت کوي چې کوښښ کوئ چې په غلطي کې درڅخه څوک خوږ نه شي رسول الله ﷺ مونږ له تیغ یا غیشي سره په بازار کې د تللو طریقه ښیي او فرمایي : **إذا مرَّ أحدُكم في مسجدِنا أو في سوقِنا و معه نَبْلٌ فلْيُمْسِكْ على نصالها بكفِّه ؛ لا يَعقِرُ مسلمًا .** [1]

ترجمة : کله چې یو ستاسې زمونږ په جومات کې او یا زمونږ په بازار کې تېرېدلو او غیشی یې په لاس کې وو نو هغه تېره ځای د په خپل لاس کې ونیسي ترڅو کوم مسلمان زخمي نه کړي .

همدارنګه په بل حدیث کې رسو الله ﷺ لدې نه منع کړې چې چا ته توره لوڅه ورکړل شي بلکه که یې چا ته ورکول غواړې نو په تیکي (د تورې په پوښ ) کې یې ورته واچوه یو حدیث دی فرمایي : **أنَّ النَّبيَّ صلَّى اللَّهُ علَيهِ وسلَّمَ نَهَى أن يُتعَاطى السَّيفُ مسلولًا .** [2]

ترجمة : بېشکه رسول الله ﷺ لدې څخه منع کړې چې توره چاته ورکړله شي پداسې حالت کې چې هغه له تیکي او پوښ نه را وېستل شوې وي .

ددې احتیاط له امله خو چا ته سلاح نیول هم ګناه ده په اوس وخت کې چې د توپک تفنګچې او نورو اسلحو زمانه ده نو هغه چا ته نیول هم ګناه ده رسول الله ﷺ فرمایي : **لا يُشيرُ أحدُكم على أخيهِ**

---

1 صحيح الجامع برقم 796
2 سنن أبي داود

بالسلاحِ، فإنَّهُ لا يدري، لعلَّ الشيطانَ ينزغُ في يدِه، فيقعُ في حفرةٍ من النارِ .[1]

ترجمة : پتاسې کې د څوک خپل ورور ته په سلاح اشاره نه کوي (سلاح د د هغه لوري ته نه نيسي) ځکه دی نه پوهيږي هسې نه شيطان دده په لاس کې فساد واچوي نو په اور کې به واقع شي .

همدارنګه په بل حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي څوک چې خپل سکه ورور ته هم سلاح نيسي نو ملائک وربانديې لعنت وايي رسول الله ﷺ فرمايي :

من أشار إلى أخيه بحديدةٍ، فإنَّ الملائكةَ تلعَنُه حتَّى وإن كان أخاه لأبيه وأمِّه.[2]

ترجمة : چا چې خپل ورور ته په تيره شي سره اشاره وکوله ملائک په هغه باندې لعنت وايي حتى که دا دده له مور او پلار نه هم ورور وي (اګر که ښه سکه ورور يې هم وي چې د هغه د وژلو سوچ ډېر کم کيږي خو بيا هم ملائک وربانديې صرف په توره او يا بل تېره شي سره په اشاره کولو سره لعنت وايي) دا يوازې په سلاح سره چا ته اشاره کول دي چې انسان ددې قابل ګرځوي چې ملائک وربانديې لعنت ووايي نو که څوک يې قتل کړي د هغه به څه حال وي .

## په قتل کې شريکو ټولو کسانو ته عذاب رسيږي

---

[1] متفق عليه
[2] صحيح مسلم

رسول الله ﷺ فرمايي د كوم كس په قتل كې چې هرڅو ډېر كسان هم شراكت وكوي نو ټولو ته به عذاب ور رسيږي دا خو پرېږده چې دوه ، درى ، شل يا ديرش كسان وي كه د ټولې دنيا خلک پكې شريک شي ټولو ته به عذاب رسيږي رسول الله ﷺ فرمايي : **لو أنَّ أهلَ السماءِ والأرضِ اشتركوا في دمِ مؤْمِنٍ لكبَّهم اللهُ عزَّ وجلَّ في النارِ.** [1]

ترجمة : كه د اسمانونو او زمكي اهل د يو مؤمن په وينه كې (د هغې د تويولو په ګناه كې) سره شريكان شي نو الله به دا ټول په اور كې واچوي .

[1] **صحيح الجامع برقم 5247**

## ترقیامت وړاندې به یو وخت مرګونه زیاتیږي

رسول الله پیشګویي کړېده

رسول الله ﷺ د معجزې په ډول ویلي دي چې تر قیامت وړاندې به داسې یو وخت راځي چې هلته به خلک مرګونه زیات کوي رسول الله ﷺ فرمایي : **إنَّ بين يدي الساعةِ لأيامًا ينزلُ فيها الجهلُ، ويُرفعُ فيها العِلمُ، ويكثرُ فيها الهرْجُ. والهرْجُ القتلُ** .[1]

ترجمة : بېشکه تر قیامت وړاندې داسې ورځې راتلونکې دي چې په هغې کې به جهل زیاتیږي او علم به پکې پورته کیږي او په هغه ورځو کې به الهرج زیاتیږي او الهرج قتل یعني وژل دي .

همدارنګه په بل حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایي : **يتقَاربُ الزَّمانُ، وينقُصُ العمَلُ، ويُلقى الشُّحُّ، ويَكثرُ الهرْجُ. قالوا: وما الهرْجُ؟ قالَ: القتلُ القتلُ** .[2]

ترجمة : وخت سره نېږدې کیږي عمل کمیږي په زړونو کې بخل اچول کیږي او الهرج زیاتیږي صحابه وو پوښتنه وکوله چې دا الهرج څه شی دی؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : دا قتل دی قتل .

## د کفارو د ماشومانو مرګ هم نه دی روا

---

[1] صحیح البخاري
[2] متفق علیه

رسول الله ﷺ فرمايي چې هر ماشوم اول مسلمان پيدا کيږي بيا وروسته يې مور او پلار يا يهودي او يا نصراني کړي نو د ماشومانو له قتل او وژنې څخه ځان وساتئ رسول الله ﷺ فرمايي : **ما بالُ أقوامٍ جاوزَ بهمُ القتلُ اليومَ حتى قتلوا الذرِّيَّةَ؟ أَلَا إِنَّ خيارَكم أبناءُ المشركينَ، أَلَا لَا تقتُلُوا ذُرِّيَةً، أَلَا لَا تقتُلُوا ذُرِّيَّةً، كُلُّ نَسَمَةٍ تُولَدُ علَى الفِطْرَةِ، فما يزالُ عليها حتى يُعْرِبَ عنها لسانُها، فأبواها يهوِّدانِها، أَوْ يُنَصِّرانِها .** [1]

ترجمة : په دې ځينې خلکو څه شوي دي چې په دوی کې مرګونه دومره زيات شول حتى چې دوی اوس ماشومان هم وژني خبردار بېشکه په تاسې کې غوره د مشرکانو زامن دي خبردار ماشومان مه وژنئ خبردار ماشومان مه وژنئ هر ماشوم په اول کې په فطرت باندې پيدا کيږي تردې چې ژبه يې وګرځي بيا يې مور پلار يا نصراني کوي او يا يې يهودي کوي .

## قتل په ډېرو لويو ګناهونو کې يوه ده

رسول الله ﷺ مونږ ته ډېر لوی ګناهونه حساب کړي دي او فرمايلي يې دي چې څلوردي رسول الله ﷺ فرمايي : **ألا إنما هي أربع: لا تشركوا بالله شيئا و لا تقتلوا النفس التي حرم الله إلا بالحق و لا تزنوا و لا تسرقوا.** [2]

ترجمة : خبردار بېشکه هغه څلور دي د الله سره شريک مه منئ ، هغه نفس چې الله پر تاسې حرام

---

[1] صحيح الجامع برقم **5571**
[2] صحيح الجامع برقم **2640**

کړی وي په نا حقه سره مه وژنئ ، زنا مه کوئ او غلا مه کوئ .

همدارنګه په بل حدیث کې هم څلور لوی ګناهونه شمار کړل شوي دي او هلته هم قتل پکې موجود دی رسول الله ﷺ فرمایي : **أكبرُ الكبائرِ: الإشراكُ بالله، وقتلُ النفسِ، وعقوقُ الوالدَيْنِ، وقولُ الزورِ.** [1]

ترجمة : ډېر لوی ګناهونه د الله سره شریک منل ، انسان وژل ، د مور پلار نافرماني کول او د درواغو ویناده .

په بل حدیث کې رسول الله ﷺ اوه لوی ګناهونه شمار کړي دي او هلاکونکي یې ورته ویلي دي هلته هم قتل شمار کړل شوی دی رسول الله ﷺ فرمایي : **اجتنبوا السبع الموبقات: الشرك بالله والسحر وقتل النفس التي حرم الله إلا بالحق وأكل الربا وأكل مال اليتيم والتولي يوم الزحف وقذف المحصنات المؤمنات الغافلات .** [2]

ترجمة : د اوو هلاکونکو څخه ځان وساتئ د الله سره شریک منل ، سحر ، هغه نفس وژل چې الله حرام کړي وي مګر په حقه سره ، د سود خوړل ، د یتیم مال خوړل ، د جنګ په ورځ تېښته کول او په پاکو مؤمنو ناخبره ښځو پورې تهمت ویل .

رسول الله ﷺ دې ګناهونو ته هلاکونکې ګناهونه ویلي دي چې دا انسان هلاکوي او لدې نه ځان وساتي .

---

[1] صحیح البخاري
[2] متفق علیه

په بل حديث کې رسول الله ﷺ پنځه ګناهونه شمارلي دي چې ددې لپاره کفاره نشته او قتل يې له هغې نه هم شمارلی دی رسول الله ﷺ فرمايي : **خمسٌ ليسَ لهنَّ كفَّارةٌ: الشِّركُ باللهِ، و قَتلُ النَّفسِ بغيرِ حقٍّ، و بُهْتُ المؤمنِ، و الفِرارُ من الزَّحفِ، و يمينٌ صابرةٌ يُقْتَطَعُ بها مالًا بغيرِ حقٍّ .** [1]

ترجمة : پنځه ګناهونه دي چې کفاره نه لري د الله سره شريک منل ، په نا حقه سره څوک وژل ، په مؤمن پسې بهتان ويل ، له جنګ نه تښتېدل او ددې لپاره په د رواغو قسم خوړل چې پردی مال پرې حاصل کړي په ناروا سره.

سره ددې چې قتل دومره لويه ګناه ده اکثر خلک يې داسې کوي چې هېڅ مهمه ورته نه ښکاره کيږي او ددې په اړه هم رسول الله ﷺ د معجزې په طور په هغه وخت کې صحابه کرامو ته ويلي ويو چې يو وخت به خلک قتلونه ډېر په بې پرواهي سره کوي او هېڅ توجه به ورته نه کوي رسول الله ﷺ فرمايي : **والَّذي نَفسي بيدِهِ! ليأتينَّ على الناسِ زمانٌ لا يَدري القاتلُ في أيِّ شيءٍ قَتَلَ. ولا يَدري المقتولُ على أيِّ شيءٍ قُتِلَ .** [2]

ترجمة : زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی په خلکو باندې به داسې يو وخت راشي چې قاتل به پدې نه وي خبر چې ولې يې قتل وکولو او مقتول به پدې نه وي خبر چې ولې ووژل شو .

يعني هېڅ کومه لويه په ياد د پاتې کېدلو خبره به نه وي او نه به کومه لويه او ددې قابل

---

1 **صحيح الجامع برقم 3247**
2 **صحيح مسلم**

موضوع وي چې انسان د هغې له امله قتل وکوي بيا به هم خلک قتل کوي .

د انسانانو قتل خو ډېره لويه خبره ده په يو حديث کې د حيواناتو مرگ چې عبث کيږي هم لويه گناه ويل شوېده رسول الله ﷺ فرمايي : **إن أعظم الذنوب عند الله رجل تزوج امرأة فلما قضى حاجته منها طلقها و ذهب بمهرها و رجل استعمل رجلا فذهب بأجرته و آخر يقتل دابة عبثا .** [1]

ترجمة : د الله په وړاندې ډېر لوی گناهونه دادي چې يو سړی د يوې ښځې سره واده وکوي کله چې د هغې نه خپل حاجت پوره کړي طلاقه يې کړي او مهر يې يوسي او يوسړی وي بل سړی په کار باندې ولگوي چې هغه کار وکوي د هغه مزدوري ورنه کړي او بل هغه کس دی چې يو حيوان عبث او بې فايدې ووژني (څه ضرورت يې ورته نه وي) .

د قيامت په ورځ به دوزخ هم غواړي چې قاتلين د پکې واچول شي لکه څنگه به چې د نورو لويو گناهونو کونکي غواړي حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **يخرج عنق من النار يتكلم يقول: وكلت اليوم بثلاثة: بكل جبار عنيد، ومن جعل مع الله إلها آخر، ومن قتل نفسا بغير حق. فينطوي عليهم فيقذفهم في حمراء جهنم.** [2]

ترجمة : را وبه وزي يوه غاړه له اور نه خبرې به کوي وايي به نن ما ته د دريو شيانو وکالت راکړل شوی دی (په دريو کسانو پسې راغلی يم) په هر جبر کونکي او ضد کونکي پسې ، په هر هغه

---

[1] صحيح الجامع برقم **1567**
[2] رواه احمد

پسې چې لـه الله سره يـې شريـک نـيـولـی وي ، پـه هر هغه کس پسې چې بې ګناه قـتـل يې کړی وي هغوی بـه ټول را ټول کړي او پـه سور اور کې بـه يـې واچوي .

## د مسلمانو پـه جنګ کې قـاتـل او مقـتـول دواړه پـه اور کـې وي

پـه هغه ځای کې چې يـو مسلمان پـه بل او بل پـه بل پسې خپله سلاح را وباسي نـو چې هر يـو ووژل شو دواړه ګناهکاران دي او پـه اور کې بـه وي رسول اللهﷺ فـرمـايـل : **إذا التقى المسلمان بسيفيهما فقتل أحدهما صاحبه فالقاتل والمقتول في النار قيل: يا رسول الله هذا القاتل فما بال المقتول؟ قال: إنه كان حريصا على قتل صاحبه .** [1]

تـرجمة : کـلـه چې دوه مسلمانـان خپلې تـورې سره مخامخ کړي (لـه خپلو اسلحو سره يو بل تـه مخامخ شي) او يـو پـه بـل بـانـدې بـرلاسی شي او هغه مړ کړي نـو پـدې صورت کې وژونـکی او وژل شوی دواړه پـه اور کې دي چا ورڅخه پوښتنه وکولـه : يـا رسول اللهﷺ قـاتـل خو صحيح ده ځکه بـه پـه اور کې وي چې قـتـل يـې وکولـو ددې مقـتـول څه ګناه؟ رسول اللهﷺ وويـل : ځکه ده د خپل ورور د قـتـل کوښښ کاوه (خو پرې بـرلاسی نـه شو) .

## قـتـل شيطان تـه ډېـره خوښه ګناه ده

څرنګه چې شيطان هروخت پـدې کـوښښ کـی دی چې يـو انسان ګمراه کړي او پـه يـو انسان بـانـدې داسې کار وکوي چې دده پـه دنـيـا او آخرت کې دده لـپاره د تـاوان خبـره وي نـو هغه پـدې ډېـر

[1] متفق عليه

خوشحالیږي چې په یو چا باندې قتل وکوي او چې څوک د قتل د ګناه مرتکب کړي نو دی بیا ډیر خوشحال شي ځکه پوهیږي چې اوس مې په رشتیا سره د اور د عذاب مستحق کړو او همدا د شیطان ارمان دی چې په دنیا کې څومره خلک دي دا ټول داسې کارونه وکوي چې الله ورته په غصه شي او دا ټول دوزخ ته لاړ شي حضرت ابو موسی الاشعري فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **إذا أصبح إبليس بث جنوده، فيقول: من أخذل اليوم مسلما ألبسته التاج ... ويجيء هذا فيقول لم أزل به حتى قتل، فيقول: أنت أنت ويلبسه التاج .** [1]

ترجمة : کله چې شیطان صباء کړي نو خپل لښکریان ولیږي او ورته ووایي چا چې کوم مسلمان نن ذلیل کړو زه هغه ته تاج ور په سر کوم دا یو شیطان راشي او وایي نن زه له یو انسان سره وم تردې چې هغه قتل وکولو مشر شیطان ورته ووایي ته خو بس ته یې او بیا هغه ته تاج ور په سر کړي .

## قتل د انسان دیانت خرابوي

رسول الله ﷺ فرمایي ترڅو چې انسان قتل نه وي کړی هغه په خپل ایمان کې ډیر په ښه توګه روان وي خو کله چې قتل وکوي بیا هغه شان سفر نشي کولی رسول الله ﷺ فرمایي : **لَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ مُعْنِقًا صَالِحًا مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا، فَإِذَا أَصَابَ دَمًا حَرَامًا بَلَّحَ .** [2]

ترجمة : مؤمن هر وخت په ښه توګه روان وي او صالح وي ترڅو چې حرامې وینې ته نه وي رسېدلی (په ناروا سره یې د چا وینه نه وي تویې کړې)

---

[1] رواه ابن حبان في صحيحه
[2] سنن ابي داود

کله چې حرامه وینه تویه کړي نو بیا هغه سفر پرې کړي .

## واقعه

ترجمة : د حضرت عمران بن حصین نه روایت دی هغه فرمایي زه د رسول الله ﷺ سره وم هغه یو د مسلمانانو لښکر مشرکینو ته ور ولېږلو کله چې ورسره مخامخ شو سخت جنګ یې وکولو جنګ دوام وکولو په مسلمانانو کې یو کس په یو مشرک باندې له خپلې نیزې سره حمله وکوله کله چې وربانديې ور نېږدې شو هغه وویل أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ إِنِّي مُسْلِمٌ (زه ددې ګواهي ورکوم چې نشته په حقه معبود مګر یوازې الله دی او زه مسلمان یم) خو ددې خبرې نه وروسته هم هغه مسلمان هغه کس ووهلو بېرته چې راغلل رسول الله ﷺ ته یې وویل : یا رسول الله ﷺ زه هلاک شوم رسول الله ﷺ ورته وویل : څه د وکول؟ ده ورته خپله قصه تېره کړه رسول الله ﷺ ورته وویل : تا ولې د هغه ګېډه نه څېرله تا به کتلي وای چې د هغه په زړه کې څه شی دی هغه وویل : یا رسول الله ﷺ که ما د هغه ګېډه پرې څیرلې وای زه به پوه شوی وای چې د هغه په ګېډه کې څه شی دی بیا رسول الله ﷺ ورته وویل : نو هغه چې څه وویل هغه تا قبول نه کړل او هغه چې د هغه په زړه کې دي هغه تا قبول نه کړل بیا رسول الله ﷺ ترې چُپ شو بیا دا کس لږ وخت پاتې شو بیا مړ شو نو مونږ هغه خښ کړو چې صبا مو ولیدو هغه د زمکې په سر وو مونږ ویل کېدای شي دښمنانو هغه را لوڅ کړی وي بېرته مو خښ کړو مونږ ماشومانو ته امر وکولو چې دده په قبر باندې پهره وکوي صبا هغه بیا د

زمکې په سر وو مونږ وويل کېداى شي ماشومانو را ويستلى وي بله ورځ مو بېرته دفن کړو او مونږ پخپله وربانديې څوکيداري وکوله بيا هم هغه صبا د زمکې په سره وو بيا مونږ هلته په يو ژور ځاى کې واچولو رسول الله ﷺ بيا وويل :

**إِنَّ الْأَرْضَ لَتَقْبَلُ مَنْ هُوَ شَرٌّ مِنْهُ، وَلَكِنَّ اللَّهَ أَحَبَّ أَنْ يُرِيَكُمْ تَعْظِيمَ حُرْمَةِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ** .[1]

ترجمه : بېشکه زمکه هغه څه قبلوي چې له زمکې نه شر وي لکن الله ښه ګڼله چې تاسې ته د لا اله الا الله عظمت او لويي در ښکاره کړي .

---

[1] **ابن ماجة**

# د قصداً وژونکي توبة

لکه مخکې چې تېر شول الله فرمايي : وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِناً مُّتَعَمِّداً فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِداً فِيهَا وَغَضِبَ اللّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَاباً عَظِيماً.[1]

ترجمة : او هر څوک چې مړ کړي کوم مؤمن په قصد سره (او د مسلمان دغه قتل روا هم وګڼي) نو جزا د ده دوزخ دی (په داسې حال کې) چې تل به وي دی (دغه حلال ګڼونکی د قتل) په هغه ((دوزخ)) کې او غضب (قهر) کړی دی الله په ده باندې او لرې کړی دی (الله ) دا (قاتل) له خپل رحمت څخه او تيار کړی دی ده ته عذاب ډېر لوی .

شيخ المفسرين امام طبري فرمايي : ځينې وايي چې پدې کې الله د قاتل لپاره چې په هر حالت او هر صفت کې وي آخري سزا مقرره کړې ده او هغه ته يې د دائمي جهنم سزا ور اورولې ده معنی يې داده چې دده لپاره توبه نشته نو د پورتني آيت له مخې چې هرڅوک هم قصداً قتل وکوي نو د هغه لپاره په اور کې پاتې کېدل دي .

حضرت سالم بن أبي الجعد فرمايي مونږ له حضرت عبد الله بن عباس سره ناست وو چې يو کس ورته راغلو ورته يې وويل : يا عبد الله ابن عباس هغه کس چې قصداً قتل وکوي د هغه په اړه ستا څه خيال دی؟ ده مبارک ورته وويل : **جزاؤه جهنم خالداً فيها وغضب الله عليه ولعنه وأعد له عذاباً عظيما** (جزاء يې جهنم ده همېشه به پکې وي په هغه باندې به د الله غضب وي او په هغه باندې به د الله لعنت وي او الله هغه ته لوی عذاب تيار کړی دی) هغه کس

[1] سورة النساء آية ٩٣

ورته وویل ستا څه نظر دی که هغه توبه وباسي ؟ حضرت عبد الله بن عباس ورته وویل : په هغه د مور بوره شي د هغه لپاره توبه له کومه شوه رسول الله ﷺ فرمایل : **ثكلته أمه ! وأنى له التوبة ؟ فوالذي نفسي بيده لقد سمعت نبيكم يقول : ثكلته أمه ! رجل قتل رجلاً متعمداً جاء يوم القيامة آخذاً بيمينه أو بشماله تشخب أوداجه دماً في قُبُل عرش الرحمن يقول : سل هذا فيما قتلني ؟**

ترجمة : په ده د مور بوره شي د هغه لپاره توبه له کومه شوه زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی ما ستاسې له نبي نه آورېدلې دي چې هغه فرمایل : په قاتل باندې د مور بوره شي یو سړی چې بل سړی مړ کړي په قصد سره د قیامت په ورځ به راشي هغه به یې تر ښي یا تر چپ لاس نیولی وي له زخمونو څخه به یې وینې بهیږي د عرش په مخکې او وایي به لدې نه پوښتنه وکوه چې زه یې ولې مړ کړم؟

او زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی دا آیت نازل شو (په کوم کې چې الله فرمایي قاتل به همېشه په دوزخ کې وي) بیا بل آیت نسخ نه کړو تردې چې رسول الله ﷺ وفات شو (نو د هغه نه وروسته خو بیا د نسخ کېدلو څه صورت او احتمال پاتې نه شو) .

بیا مخکې امام طبري فرمایي : پدې کې ښه خبره هغه ده چې چا ویلي دي چې ددې آیت معنی داده چې د قاتل جزاء داده چې دی به په اور کې همېشه وي لکن بیا الله په ځینې خلکو باندې رحم کوي او بښنه ورته کوي او هغه ته د اور دائمي سزا نه ورکوي لکه الله چې فرمایي : **قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ**

أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعاً إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ . [1]

ترجمة : ووايه (اې محمده! چې فرمائي الله ) اې بندګانو (مؤمنانو) زما هغو کسانو چې اسراف ئې کړی دی پر نفسونو خپلو مه نا اميده کېږئ له رحمته د الله (ځکه چې) بېشکه الله مغفرت کوي ښې ګناهونه ټول (اګر که ډېر هم وي بې له شرکه) بېشکه چې الله هم دی دی ښه ښونکی (د خطياتو) ډېر رحم والا (په انعام د اجر او ثواب سره) .

نو کله به الله په چا مهربان کيږي او بالکل به يې اور ته نه اچوي او ځينې به اور ته واچوي او بيا به الله پرې رحم وکوي او بېرته به يې ترينه را وباسي او د همېشه لپاره به يې هلته نه پريږدي .[2]

او د جمهورو علماوو همدا مذهب دی چې که قصداً قاتل هم توبه وباسي نو الله د هغه توبه هم قبلوي او د جمهورو ددې مذهب او دې رايې نه يوازې حضرت ابن عباس مخالفت کړی دی چې خبره يې همدا اوس تېره شوه .

بيا امام نووي پدې اړه يو څه تفصيل کړی دی هغه فرمايي : هغه څوک چې قصداً بغير د حق نه قتل وکوي او دا قتل ځان ته حلال هم وګڼي نو پدې حلال ګڼلو سره دا کس کافر او مرتد شو دا به بالاجماع په جهنم کې وي او همېشه به پکې وي او هغه څوک چې حلال يې ونه ګڼي بلکه حرام يې وګڼي لکن بيا يې هم کوي نو دا مرتکب شو لويه ګناه يې وکوله دده جزا داده چې دا به همېشه په جهنم کې وي لکن الله خپلو بندګانو ته دا

---

[1] سورة الزمر آية ٥٣
[2] تفسير الطبري ج 9 ص 69/63

وعده هم ورکړېده چې کوم کس پداسې حالت کې وفات شي چې دی موحد او مسلمان وي هغه به همېشه په اور کې نه پاتې کیږي نو الله یې کېدای شي د خپل رحمت په سیورې کي وساتي او بالکل سزا ورنه کړي او یا کیدای شي لکه عام ګناه کاران مسلمانان دوزخ ته لاړ شي هلته د خپلې ګناه سزا ووینې او بېرته ورځخه وویستل شي او په اور کې همېشه پاتې نشي .[1]

## یو څوک قتل ولې کوي؟

لکه څرنګه چې تاسې ولیدل چې قتل یوه داسې ګناه ده چې الله ورته په آخرت کې د همېشه دردناک عذاب یادونه کړېده او حضرت عبد الله ابن عباس فرمایي چې همدا یې سزا ده او دده لپاره بله هېڅ لاره نشته پدې اړه خبرې تېرې شوې همدارنګه رسول الله ﷺ په مختلفو احادیثو کې ورځخه په سختي سره منع کړېده او دا یې له لویو ګناهونو ځخه شمار کړېده نو یو مسلمان دا قتل ولې کوي؟ ددې خبرې په ځواب کې علماوو د قتل لپاره څه اسباب را ټول کړي دي باید انسان له هغه شیانو ځخه ځان وساتي نو له قتل کولو نه به هم محفوظ شي یو څو ته یې ستاسې توجه را ګرځول غواړم .

[1] شرح صحیح مسلم للنووي

## د قتل سببونه

د قتل لپاره ډېر سببونه دي ډېر داسې شيان دي چې يو انسان د بل انسان قتل ته ور غواړي او ورته هڅوي يې خو زه يې د يادونې وړ بولم چې په ټولو کې لوی سبب هغه خبيث شيطان دی چې د انسان د پيدا کېدو په وخت کې يې الله ته قسم کړی دی او د الله په عزت يې قسم کړی دی چې زه به د ژوند په هر قدم کې انسان ګمراه کوم او هغه د همدې قسم نه وروسته لګيا دی په انسان باندې هروخت داسې کارونه کوي چې هغه د انسان په دنيا او آخرت کې د شرمندګي او خجالت او رسوايي سبب کيږي د همدې کارونو په سلسله کې يو قتل دی نو د قتل لپاره هم چې کوم اسباب دي هغو ته هم انسان پخپله نه ورځي هغو ته يې هم شيطان ور ولي هغه سببونه به زيات وي زه د علماوو له تفصيلي بيانونو څخه يو څو په مختصر ډول را اخلم .

## د قتل لمړی سبب کينه

کينه هغه بد حرکت دی چې شيطان يې د انسان په زړه کې هغه وخت ور اچوي کله چې انسان يو بل انسان په ښه حالت او ښه نعمت کې وګوري نو ددې په ځای چې په زړه کې ور واچوي چې دی هم الله ته لاس پورته کړي او دی د ځان لپاره هم ورڅخه داسې نعمت وغواړي دی په زړه کې له هغه سره دښمني ور اچوي او په زړه کې ورته داسې تمنا ور واچوي چې دا نعمت دده له لاس نه وتلی وای علماء د کينې تعريف داسې کوي : **تمنى زوال نعمة عن مستحق لها** (څوک چې د کوم نعمت مستحق وي په زړه کې ددې نعمت له هغه څه زوال کولو ته کينه ويل کيږي) .

حضرت عائشه فرمايي : كَانَ إِذَا اشْتَكَى رَسُولُ اللَّهِ رَقَاهُ جِبْرِيلُ قَالَ بِاسْمِ اللَّهِ يُبْرِيكَ وَمِنْ كُلِّ دَاءٍ يَشْفِيكَ وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ وَشَرِّ كُلِّ ذِي عَيْنٍ .[1]

ترجمة : كله به چې رسول الله ﷺ بيمار شو جبريل به دم كولو د الله په نوم تا به جوړ كړي او له هرې بيماري نه به شفاء دركړي او له شر د كينه كونكي نه كله چې هغه كينه كوي او له شر د هر هغه چا څخه چې سترګې يې تيزي وي او كوم شي ته چې وګوري په نظر كوي يې .

او كله چې د انسان په زړه كې داسې كينه وي چې دده تمنا وي چې دا نعمت چې په كوم بنده دی دا له هغه نه لرې شي او ما ته راشي دا ډول كينه ناروا او حرامه ده او د همدې كينې له امله د حضرت آدم زوی قابيل خپل ورور هابيل قتل كړی وو او رسول الله ﷺ لدې ډول كينې كولو نه د ځان ساتنې امر كړی دی رسول الله ﷺ فرمايلي دي : إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَنَاجَشُوا وَلَاتَحَاسَدُوا وَلَاتَبَاغَضُوا وَلَاتَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا .[2]

ترجمة : تاسې له ګمان څخه ځان وساتئ ځكه دا ګمان سختې دروغ خبرې دي (داسې خبرې دي چې څه حقيقت يې نه وي خو د انسان په دماغو كې را ګرځي) تاسې يو د بل عيبونه مه لټوئ يو د بل جاسوسي مه كوئ تاسې چې كوم شی پخپله نه اخلئ د خلكو لپاره د هغې قيمت مه زياتوئ (ځينې خلك داسې وي چې څوك كوم شی خرڅوي ددې لپاره چې نور اخيستونكي پرې را تيز كړل يو شی په قيمته

1 صحيح مسلم
2 صحيح البخاري

غواړي او خپله هغه شی اخیستل نه غواړي خو په لوړ قیمت یې ددې لپاره غواړي چې نور اخیستونکي پرې ور تیز کړي دېته تناجش وایي او رسول الله ﷺ ورځخه منع کړېده) یو له بل سره کینه مه کوئ یو له بل نه نفرت مه کوئ یو بل ته شا مه کوئ بلکه یو له بل سره په مینه مخامخ کېږئ او د الله ښه بندګان او یو د بل ورونه شئ .

البته که د انسان په زړه کې دا تمنا وي لکه چې هغه ته کوم نعمت او کوم سهولت ورکړل شوی دی چې داسې ماته هم راکړل شي نو دا ډول تمنا روا او دېته غبطه ویل کیږي او پدې کې هېڅ حرمت نشته او د داسې تمنا څخه هېڅ ډول نفرت او کرکه او دښمني نه پیدا کیږي او دا هم د حسد (کینې) یو ډول دی ددې امله علماء فرمایي په کینه کې څلور مرتبې دي .

۱. اوله مرتبه او په ټولو کې بده مرتبه داده چې د انسان په زړه کې دا تمنا وي چې له فلاني څخه د دا موجوده نعمت لرې شي او دا یې هم خواهش نه وي چې ده ته ورکړل شي خو صرف له هغه نه لرې کېدل یې لویه آرزوي وي پدې کې صرف بدي ده او د ښه والي پکې هېڅ لوری او احتمال نشته او نه پکې څه ښه او غوره اړخ شته .

۲. دوهمه مرتبه داده چې د انسان په زړه کې دا تمنا وي چې یو نعمت له فلاني څخه واخیستل شي او ده ته ورکړل شي د مثال په ډول یو ښکلی کور وي چې دا دده نه وای بلکه زما وای یا یو ښکلی موټر وي ، ښائسته ښځه وي چې دا له ده څخه واخیستل شي او ما ته راکړل شي دا مرتبه د حسد او کینې هم بده ده ځکه له بل چا څخه د نعمت د زوال تمنا کول په هېڅ صورت ښه والی نه

لري لكن پدې کې يو ښه طرف خو لږ ترلږه دادی چې دی دا تمنا کوي چې هغه ده ته ورکړل شي .

٣. دريمه مرتبه داده چې د انسان په زړه کې دا تمنا نه وي چې هماغه نعمت چې د فلاني سره دی هغه د ده ته ورکړل شي بلکه لکه هغه داسې نعمت د ده ته هم ورکړل شي او که ده ته نه ورکول کيږي نو له هغه څخه د هم لرې کړل شي چې لږ تر لږه دده او د هغه په مينځ کې څه فرق او تفاوت پاتې نه شي دا هم بده کينه ده او هم ښه طرف لري بده پدې ده چې دده دا تمنا هم ده چې که ده ته نه ورکول کيږي له هغه څخه د هم واخيستل شي او ښه والی يې دادی چې دی هماغه نعمت ځان ته نه بلکه د هغه په مثل غوره نعمت دی ځان ته غواړي .

٤. څلورمه مرتبه او داسې مرتبه چې څه بد والی نه لري دا ده چې انسان د بل چا له نعمت څخه نه سوزي بلکه د ځان لپاره هم هماغه ډول نعمت غواړي لکه هغه ته چې ورکړل شوی دی او له هغه نه يې هم د زوال تمنا او اميد نه کوي نو دې ډول کينې ته غبطه هم ويل کيږي او که دا د دنيا په کارونو کې وي نو روا دی او که د دين په کارونو کې وي نو بيا مستحب هم دی يعني يو چا ته الله ښه دديني خدمت موقع ورکړيده ښه علم يې ورکړی دی نو دده تمنا وي چې کاش ده ته يې هم همداسې ورکړی وی او داسې نور ..

د غبطې په اړه يو حديث دی حضرت عبد الله ابن مسعود فرمايي : ما له رسول الله ﷺ څخه واوريدل چې هغه فرمايل : **لا حَسَدَ إِلا فِي اثْنَتَيْنِ: رَجُلٍ**

آتَاهُ اللَّهُ مَالاً فَسَلَّطَهُ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ، وَرَجُلٍ آتَاهُ اللَّهُ حِكْمَةً فَهُوَ يَقْضِي بِهَا وَيُعَلِّمُهَا. [1]

ترجمة : حسد نشته مگر په دوو شيانو کې يو سړی وي چې الله ورته مال ورکړی وي او بيا يې هغه پرې مقرر کړی وي چې د حق په لاره کې يې مصرف کوي (نو که بل څوک هم دا تمنا وکوي چې دده هم داسې مال وی او د الله په لاره کې يې مصرف کولی) او بل يو کس وي چې الله ورته علم ورکړی وي هغه يې خپروي او خلکو ته يې ور ښيي .

## د کينې نه ځان خلاصول

ددې لپاره چې انسان د کينې څخه محفوظ شي نو بايد خپل ځان وساتي علماء فرمايي د کينې نه به څنگه ځان ساتي؟ د کينې نه چې ځان ساتي يو څو شيان به خپلوي

### الف : د الله نه ويره

کله چې په زړه کې له الله نه ويره را پيدا شي نو د انسان هر اړخ پخپله اصلاح کيږي نو هغه څه چې ده ته ورکړل شوي وي په هغه خوشحال وي او هغه چې نه وي ورکړل شوي د هغې په بدل کې صبر کوي او په خپلو موجوده نعمتونو قناعت کوي نو کله چې دده د ننه د ايمان جذبه قوي شي نو ده ته ټول کارونه اسان شي بيا که څه شی ده ته په کار وي نو د الله نه يې غواړي او هغه يې چې ده ته ورنه کړي نو بيا يې د هېچا لوري ته پام نه گرځي او په زړه کې چې د الله نه د وېرې نور يو ځل رڼا شي بيا هلته کينه ، بغض ، عداوت، نيت بدي نشي ورتلی .

[1] رواه البخاري و مسلم و ابن ماجة

## ب : رضا بالقضاء

کله چې انسان غواړي چې د کینې بیماري له ده نه ختمه شي نو هغه د په هغه څه شي باندې خوشې شکاره کړي چې الله یې دده په حق کې فیصله کړېده او کوم نعمت یې چې ده ته نه دی ورکړی نو صبر د وکوي او دا د وګڼي چې الله دده په حق کې هر ډول فیصله کړېده که دده د عزت او یا ذلت او یا هرڅه چې وي دا فیصله دده لپاره په خیر ده او الله په خپلو بندګانو باندې د هغوی له مورانو څخه هم ډېر مهربان دی نو چې هغه کومه فیصله کوي دا به د رحمت تقاضا وي نو چې کله انسان په ځان کې دا فکر او تصور پیدا کړلی شي نو بیا هرڅه کول ورته اسان وي .

## ج: په دنیایي شیانو کې بل چا ته نه کتل

انسان باید په دنیایي ترقي کې تر ځان لوړ چا ته ونه ګوري ترڅو ورته خپل نعمتونه کم ښکاره شي بلکه هغه چا ته د وګوري چې تر ده څخه په دنیایي لحاظ کمزوری وي نو بیا به خپل نعمتونه ورته لوی او عالي ښکاره شي او په بدل کې به یې دی شکر وباسي الله چې نورو انسانانو ته کوم نعمتونه ورکړي دي الله به یې هغوی مستحقین لیدلي وي ځکه یې ورکړي دي او الله مونږ ته هدایت کړی دی چې د نورو خلکو نعمتونو ته سترګې ونه نیسو الله فرمایي : **وَلاَ تَتَمَنَّوْاْ مَا فَضَّلَ اللّهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُواْ وَلِلنِّسَاء نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ وَاسْأَلُواْ اللّهَ مِن فَضْلِهِ إِنَّ اللّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا (32)** [1]

[1] سورة النساء آية ٣٢

ترجمة : او ارمان مه کوئ تاسې د هغه شي چې غوره ګرځولی دی الله په هغه شي سره ځينې له تاسې پر ځينو نورو شته نارينه ؤ لره نصيب (برخه مقرره له ازله) په سبب د هغه عمل چې کړی وي دوی او شته ښځو لره نصيب (برخه مقرره له ازله) په سبب د هغه عمل چې کړی وي دوی او سوال کوئ تاسې له الله نه له فضل ( او مهرباني) د ده بېشکه چې الله دی پر هر شي ښه عالم (ډېر دانا) .

نو هغه کس چې له کينې څخه ځان ساتل غواړي دا خبرې به په ذهن کې وساتي او په خپل عمل او تصور کې به يې عملي کړي بيا به ورته کينه زړه ته نه ورننوزي او نه به شيطان لدې لارې په ده باندې غلبه پيدا کړلی شي .

## د قتل دوهم سبب کفر

په کوم انسان کې چې کفر راشي دا تر ټولو نه زيات انسان وژنې ته غوښتنه کوي نه يوازې عام انسانان بلکه هغه کسان چې کافران شوي دي د نيکانو خلکو قتل ته لاس اچوي بني اسرائيلو د خپل کفر له امله څومره انبياء په شهادت رسولي دي الله فرمايي : وَإِذْ قُلْتُمْ يَا مُوسَى لَن نَّصْبِرَ عَلَىَ طَعَامٍ وَاحِدٍ فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنبِتُ الأَرْضُ مِن بَقْلِهَا وَقِثَّآئِهَا وَفُومِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا قَالَ أَتَسْتَبْدِلُونَ الَّذِي هُوَ أَدْنَى بِالَّذِي هُوَ خَيْرٌ اهْبِطُواْ مِصْراً فَإِنَّ لَكُم مَّا سَأَلْتُمْ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ وَبَآؤُوْاْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُواْ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ذَلِكَ بِمَا عَصَواْ وَّكَانُواْ يَعْتَدُونَ (61) [1]

ترجمة : او (ياد کړئ ) هغه وخت چې وويل تاسې اې موسی! هېڅکله صبر نشو کولی مونږ پر طعام

[1] سورة البقرة

یو (قسم د من او سلوی) باندې پس وغواړه زمونږ لپاره له خپل پروردګار نه چې را وباسي مونږ ته له هغو شیانو څخه چې زرغونوي ئې ځمکه له سابو (ساګو) د دې او له بادرنګو (ترو) د دې او له هوږې (یا غنمو یا نخودو) د دې او له نسکو د دې او له پیازو د دې نو وویل (موسی) آیا بدلوئ (اخلئ!) تاسې هغه شی چې هغه نا کاره دی په هغه شي چې هغه ډېر غوره دی چې (کله مو داسې وکړل نو) کوز شئ (د شام له تیه نه) یوه ښار ته پس بېشکه تاسې ته دي هغه شی چې غواړئ یې او مقرر کړل شو پر دوی (د نعمت د کفران او په خپل قسمت د نا رضائي په سبب) ذلت او محتاجي او اخته شول دوی په غضب له (جانبه د) الله دا (خواري او عاجزي) په سبب د دې وه چې بېشکه دوی وو کافران (منکران) په آیتونو (احکامو) د الله او وژل به یې انبیاء (لکه شعیب، زکریا او یحیی ) په ناحقه سره دا (کفر او قتل) په دې سبب وو چې سرکشي ئې کوله (له احکامو د الله نه او وو دوی چې له حدونو به تېرېدل (د عصیان په سبب) .

بني اسرائیلو به هغه انبیاء کرام په شهادت رسول چې دوی ته یې هېڅ ډول تکلیف نه وو ورکړی هغوی یوازې د خپل کفر له امله انبیاء کرام په شهادت رسول همدارنګه په اوس وخت کې هم چې څومره قتلونه کیږي په څومره ملکونو باندې چې کفري ملکونه تیری کوي د هغوی وجه صرف د کفارو کفر دی او که دا کفر نه وي نو هېڅ قتل به نه وي همدارنګه په تېر تاریخ کې که نمرودیانو ابراهیم په اور کې اچولی دی که فرعون د موسی د قتل په اراده وتلی دی که په بدر ، احد او خندق او نورو حادثو کې کفار د مسلمانانو په وژلو پسې راغلي دي وجه یې یوازې او یوازې د کفارو کفر دی تاسې ته معلومه ده چې فرعون حضرت موسی ولې قتلولو؟ فرعون یې

پخپله وجه ویلې ده الله یې مونږ ته واقعه بیانوي او فرمایي : وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُونِي أَقْتُلْ مُوسَى وَلْيَدْعُ رَبَّهُ إِنِّي أَخَافُ أَن يُبَدِّلَ دِينَكُمْ أَوْ أَن يُظْهِرَ فِي الْأَرْضِ الْفَسَادَ (26) [1]

ترجمه : او وویل فرعون (عملې خپلې ته) پرېږدئ (اې مشرانو) ما چې ووژنم موسی او را ودې بولي (موسی) رب خپل (چې خلاص ئې کړي له ما) (وویل فرعون) بېشکه چې زه وېرېږم چې بدل به کړي (موسی) دین ستاسې (اې قبطیانو!) یا به ظاهر کړي (موسی) په زمکه (د مصر) کې فساد (او مخالفت په مینځ زمونږ کې) .

فرعون صرف لدې نه ډارېدو چې موسی به په خلکو کې د الله د دین دعوت وچلوي او هغه به دوی له کفر نه اسلام ته واړوي نو ددې امله یې د موسی د قتل اراده کړې وه چې الله وربانديې بریالی نه کړو او په بدل کې یې خپل ځان بادشاهي او هرڅه له لاسه ورکړل کفر یوازې د تقل لپاره نه بلکه د هر ډول فساد بیخ او بنیاد دی ځکه خو حضرت نوح شکلې دعاء کوي او فرمایي : وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا (26) [2]

ترجمة : او وویل نوح اې ربه زما مه پرېږده! پر ځمکه باندې له کافرانو څخه هېڅ اوسېدونکی (یا ګرځېدونکی او ټول هلاک کړه) .

## د کفر نه ځان خلاصول

---

[1] سورة غافر
[2] سورة نوح

ﷲ د مسلمان لدې نه وساتي چې يا کفر او يا د کفر کوم عمل له ده څخه صادرشي او که چېرته ترينه صادر شي د هغه نه د خلاصون لاره څومره چې کېدلی شي دومره زر او عاجله توبة ده نېکو عملونو ته مخ اړول او له بدو څخه را ګرځېدل دي ﷲ فرمايي : **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا** [1] .

ترجمة : اې هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی (يعنې اې مؤمنانو!) توبه وباسئ تاسې ﷲ ته توبه خالصه رښتيا د زړه له کومي.

[1] سورة التحريم آية ٨

# د قتل دريم سبب فقر

فقر هم د قتل سبب كيږي د جاهليت په زمانه كې خو به خلكو خپل ماشومان هم لدې ويرې مړه كول چې دا به لوى شي د دوى ساتل دي او په دوى خوراک كول دي نو مونږ د ځان لپاره خوراک نشو پيدا كولى د دوى لپاره به يې څنګه پيدا كوو نو ددې ويرې به يې خپل ماشومان مړه كول الله ددې غلط رواج څخه منع وكوله او خلكو ته يې ور په زړه كړل چې تاسې ته او دوى ته يعني اولاد او والدينو دواړو ته مونږ روزي وركوو نو بيا د هغوى د قتل كولو څه ضرورت دى الله وفرمايل :

قُلْ تَعَالَوْاْ أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ أَلاَّ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَلاَ تَقْتُلُواْ أَوْلاَدَكُم مِّنْ إمْلاَقٍ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ وَلاَ تَقْرَبُواْ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلاَ تَقْتُلُواْ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّهُ إِلاَّ بِالْحَقِّ ذَلِكُمْ وَصَّاكُمْ بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ (151) .[1]

ترجمة : ووايه (اې محمده! دوى ته) چې راشئ! چې زه ولولم (در واوروم) هغه چې حرام كړي دي رب ستاسې پر تاسې باندې چې شريكان مه نيسئ تاسې له دغه (الله ) سره هېڅ شى او نيكي كوئ تاسې) له مور او پلار سره په نيكي كولو سره او مه وژنئ تاسې اولاد خپل له (وېرې د فقر او) خواري نه مونږ رزق (روزي) دركوو تاسې ته اوهم دوى ته او مه نېږدې كېږئ فواحشو (بې حيائي ، نا كارو كارونو) ته هغه چې ښكاره وي له دې (فواحشو) او هغه چې پټ وي او مه وژنئ تاسې نفس هغه نفس چې حرام كړي دي الله (وژل ئې) مګر (وژنئ ئې) په حقه سره دا (څلور نهى او يو امر) حكم كړى دى الله تاسې ته په دې سره له پاره د دې چې عقل و چلوئ (پكې) تاسې.

[1] سورة الانعام آية

په بل ځای کې هم الله فرمايي : وَلاَ تَقْتُلُواْ أَوْلادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلاقٍ نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُم إنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْءًا كَبِيرًا (31) [1]

ترجمة : او مه وژنئ تاسې اولاد خپل د وېرې د فقره (او فاقه خپله چې که ډېر شي نو روزي به را باندې تنګه کړي ځکه) چې همدا مونږ روزي ورکوو دوی ته او تاسې ته هم بېشکه چې قتل د دوی ده خطاء (ګناه) لويه (چې د نسل او د نوعې قطع ده)

الله په دواړو آيتونو کې خلک لدې نه منع کړل چې د فقر له وېرې خپل ماشومان قتل کړي او وجه يې هم وفرمايله چې دوی ته او تاسې ته روزي مونږ درکوو يعني مونږ د پلرونو او اولادونو دواړو لپاره د روزي ذمه واري کوو نو بيا يې د وژلو څه ضرورت او له بله پلوه د فقر او لوږې له وېرې نه وژل دا په الله باندې بد ګمان دی چې ګني الله به ماته بيا پوره روزي رانه کړي سره ددې چې الله په قرآن کريم کې د ټولو مخلو قاتو سره د روزي وعده کړېده نو هر ژوندي شي ته انسان رزق پخپله ورکوي نو بيا که اولادونه زيات شي يا کم شي څه فرق نه پريوزي معنی دا چې په کوم کور کې لس کسان وي هلته الله د لسو کسانو خوراک ور ليږي او په کوم کور کې چې دوه کسان وي هلته الله د دوو کسانو روزي ور مقرره کوي دا خو د فقر له امله د قتل پخوانۍ خبره وه او اوس د فقر له امله خلک په مزدوري باندې قتلونه کوي چې دا دوی ته يو کار ښکاره کيږي او د پيسو ګټلو يوه لاره ورته ښکاره کيږي حال دا چې دا خلک ځان ته پيسې نه بلکه په هر قتل کې د دوزخ يوه کنده ګټي او دوی ته دا خبره ياد نه ده چې په دنيا کې مونږ ددې لپاره اوسيږي چې د ځان لپاره د آخرت د ښه والي

[1] سورة الاسراء آية ٣١

لپاره څه عمل وکوو او ددې دنیا ژوند خامخا ختمېدونکی دی او د اخرت ژوند هغه ژوند دی چې آخر او ختم نه لري نو په کار ده چې انسان د هغه ځای غم وکوي .

نو هغه کسان چې په فقر باندې آخته شي ددې په ځای چې خپل ماشومان مړه کړي لکه د جاهليت په زمانه کې او يا په پيسو باندې د چا قتل کولو ته غاړه کيږدي لکه په اوس وخت کې نو تردې دا ښه ده چې الله ته مخ واړوي او له هغه نه وغواړي چې دا فقر له ده څخه ختم کړي نو کله چې الله ته منظوره وي ترې لرې به يې کړي او تر هغه وخته پورې به دی نه له دعاء ستړی کيږي او نه به له الله نه مخ بلې خوا ته اړوي په همدې ځايونو کې په مونږ باندې صبر کول لازم شوي دي چې د هر مشکل لپاره بهترين او غوره حل دی او که دا کس پداسې حالت کې وي چې څه کار نه کوي نو چې هرکار او کسب کولی شي شروع د وربانده وکوي الله به ورته پکې برکت واچوي تاسې ته به د رسول الله ﷺ يوه مشهوره واقعه معلومه وي چې يو کس سوال کولو رسول الله ﷺ ورته په خپل لاس مبارک په تبر کې لاستی واچولو او ورته يې وويل : دا واخله په ځنګل کې لرګي را پرې کوه او دلته يې خرڅوه هغه سړي همدا کار شروع کړو او په لږ وخت کې په خپل ژوند کې په خپلو پښو ودرېدو او انسان ځان ته بايد ور په زړه کړي چې اصلي روزي ورکونکی يوازې او يوازې الله دی لکه الله چې فرمايي : إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ (58) .[1]

ترجمة : بېشکه الله هم دی ښه رزق روزي ورکوونکی دی څېښتن (خاوند) د قوت محکم مضبوط دی.

[1] سورة الذاريات

که ځوک غواړي چې فقر یې ختم شي او روزي یې فراخه شي نو الله ورته سمه لاره ښودلې ده چې انسان په هغه لاره باندې لاړ شي هېڅ مشکل به ورته مخې ته نه راځي او لداسې لوري نه به ورته رزق ورکول کیږي چې دده هېڅ ګمان هم نه وي الله فرمایي : **وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا (2) وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا (3).** [1]

ترجمة : او هغه ځوک چې وویریږي له الله ځان وساتي له معاصیو وبه ګرځوي ده ته یو ځای د وتلو (له دنیوي او آخروي غمونو نه) او رزق روزي به ورکړي (الله ) ده ته له هغه (ځایه) چې ګمان به نه کوي دی او هغه ځوک چې توکل وکړي په الله نو دغه (الله ) بس کافي دی ده لره (په دواړو جهانو کې) بېشکه الله رسېدونکی دی امر کار خپل ته په تحقیق ګرځولې ده الله هر څیز لره اندازه (نو هرڅه کیږي په تقدیر د الله سره نو هم ده ته پکار ده سپارنه د هر کار خپل.

او یو مسلمان چې هرڅومره غریب وي باید په هغه څه باندې قناعت وکوي چې دده په لاس کې دي رسول الله ﷺ ته چې حضرت ابو ایوب انصاري وویل ماته نصیحت وکوه رسول الله ﷺ ورته په سرو زرو د لیکلو قابل نصیحت وکولو ورته یې وفرمایل : **إِذَا قُمْتَ فِي صَلَاتِكَ فَصَلِّ صَلَاةَ مُوَدِّعٍ، وَلَا تَكَلَّمْ بِكَلَامٍ تَعْتَذِرُ مِنْهُ غَدًا، وَأَجْمِعِ اليَأسَ مِمَّا فِي يَدَيِ النَّاسِ .** [2]

ترجمة : کله چې مانځه ته و درېدې داسې مونځ کوه لکه دا چې ستا آخري مونځ وي داسې خبره مه

---

[1] سورة الطلاق
[2] رواه احمد

کوه چې سبا د هغې په اړه د عذر ويلو ته اړ وې د خلکو په لاسونو کې چې کوم شی دي له هغه نه خپل ځان نا اميد کړه او زړه ورځخه را ټول کړه .

## د قتل څلورم سبب شرم او غيرت

کله کله ځوک بې ځايه په غيرت کې راشي او د هغې له مخې قتل وکوي او هغه داسې ځای وي چې اسلام هلته د قتل اجازه نه ورکوي د مثال په ډول د شرم او غيرت له امله به په جاهليت کې خلکو خپلې ماشومانې ښخولې ځکه هغوی به دا فکر کاوه که دا لويه شي او بيا يې زه بل چا ته په نکاح ورکوم دا زما بې غيرتي ده او دا زما لپاره شرم دی همدارنګه په اوس وخت کې چې ځوک په خپله ښځه لور او خور باندې شکمن شي مخکې لدې چې د خپل شک په اړه پلټنه وکوي او پدې اړه رښتيا دروغ او حقيقت را ښکاره کړي نو تر هرڅه د مخه د هغه د قتل اراده وکوي ځکه دا د ځان لپاره يو غيرت ګڼي او شريعت خو وايي که يوه پېغله زنا هم وکوي نو د هغې لپاره قتل نشته په شرعي توګه به وربانډې ثابتيږي بيا به په شرعي توګه هغې ته دُرې ورکول کيږي الله يې په قرآن کريم کې سزا ښودلې ده الله فرمايي : **الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِئَةَ جَلْدَةٍ وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ (2)** [1]

ترجمة : هغه ښځه چې زنا ئې کړې وي او هغه سړی چې زنا ئې کړې وي (او ثبوت شي زناء پر دوی په اقرار يا په شهادت) پس ووهئ تاسو اې (قاضيانو او حاکمانو) هر يو له دغو دواړو سل درې او نه د نيسي تاسو لره په دغو (دواړو زنا کارانو)

[1] سورة النور

زړه سوی (او مهرباني) په (انفاذ د) حکم د الله کې که یئ تاسې چې ټینګ یقین لرئ پر الله او په ورځې آخرې (د قیامت) او حاضر دې شي عذاب ورکولو د دوی دواړو ته یوه طائفه ډله له مؤمنانو څخه (چې فضاحت یې زیات شي او خلک ورڅخه عبرت واخلي) .

همدارنګه د غیرت له امله هغه ماشوم هم وژل کیږي چې څوک پوه شي او یا یې شک شي چې دا به له زنا څخه پیدا شوی وي حال دا چې په یقیني توګه هم معلوم شي چې یو ماشوم له زنا څخه پیدا شوی دی نو د ماشوم قتل په هیڅ صورت کې روا نه دی ځکه دده بې چاره هیڅ جُرم نشته او علماء کرام فرمایي چې دا هم لدې آیت لاندې راځي چې الله فرمایي : **وَإِذَا الْمَوْؤُودَةُ سُئِلَتْ (8) بِأَيِّ ذَنبٍ قُتِلَتْ (9)** .[1]

ترجمة : او کله چې له جینۍ ژوندۍ خښې کړل شوې څخه و پوښتېدله شي (داسې) چې په کومې ګناه وژلې شوې ده (دا جینۍ).

نو هغه کسانو چې د شرم له امله قتل کوي هغه باید پدې کې له هرڅه وړاندې فکر وکوي چې دی یو مسلمان دی او مسلمان چې په هر حالت کې وي باید په هره خبره کې د الله دین ته مخ کړي او که یې غیرت وي او که یې خوشحالي وي او که یې غم وي باید هیڅ شی دی له دین او دینداري څخه بهر نه کړي په هرڅه کې له صبر تحمل او د الله دین ته د پوره تابعداري څخه کار واخلي ټول کارونه به یې هم سم وي او په هیڅ شي کې به ورته پښېماني په مخه نه ورځي .

## د قتل پنځم سبب نشه

[1] سورة التکویر آیة ۸ او ۹

نشه یو داسې حالت وي چې د انسان عقل په هغه کې مغلوب شي او بیا انسان سمه فیصله نشي کولی او انسان پدې نه پوهیږي چې هغه کوم ښه کار کوي او که بد او علماء د نشې تعریف داسې کوي : نشه یو حالت دی چې نفس ته د کوم شي له امله حاصل شي بیا انسان د ښه او بد په مینځ کې توفیر نشي کولی او ځینې علماء وایي : نشه یو داسې حالت دی چې په انسان باندې راشي بیا انسان زمکه او اسمان نشي سره جدا کولی او دواړه نه پیژني او یا اوږده او ساره په کوم شي کې نشي سره بېلولی ځینې علماء وایي : نشه یو د اسې حالت دی چې په انسان باندې راشي بیا د هغه خبرې ګډې وډې شي او خپل پټ رازونه ښکاره کړي او داسې نور تعریفونه یې علماوو کړي دي نو د نشې په وخت کې قتل ځکه واقع کیږي چې په انسان کې یو شی دی چې ورته عقل وایي او انسان له هر بد عمل څخه را منع کوي نو کله چې عقل کار پریږدي نو بیا انسان چې هرڅه کوي هغه ورته ښه ښکاره کیږي خو کله چې د نشې حالت ورڅخه لاړ شي بیا پوه شي چې ده څه کړي دي ددې وجې نه خو په نشه کې یوکس کله په خپل ځان هم تجاوز کوي او ځان هم زخمي کوي ..

ددې وجې نه خو الله په سختي سره د هغه شیانو څخه منع کړېده چې هغه انسان نشه کوي او د خمر (شرابو) په اړه یې ویلي دي چې ځان ترې وساتئ او ویلي یې دي چې شیطان غواړي پدې سره ستاسې په مینځ کې دښمني جوړه کړي الله فرمایي : **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنصَابُ وَالأَزْلاَمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (90) إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاء فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللّهِ وَعَنِ الصَّلاَةِ فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ (91)** .[1]

---

[1] **سورة المائدة**

ترجمة : اې هغو کسانو چې ایمان ئې راوړی دی (یعني اې مؤمنانو!) بېشکه هم دا خبره ده چې شراب او قمار او بتان او غشي (د فال دا څلور واړه ټول) پلیت دي له کار د شیطان څخه دي نو ځان وساتئ تاسې له دې څخه له پاره د دې چې نجات ومومئ تاسې (په دې ځان ساتلو سره) بېشکه چې هم دا خبره ده ، غواړي شیطان چې واچوي په مینځ ستاسې کې عداوت (دښمني) او بغض (کینه) او واړوي تاسې له یاده د الله او له لمانځه څخه نو آیا یئ تاسې منع کېدونکي (او ښتونکي له دې بدو کارونو؟ بلکه واوړئ) .

په پورتني آیت کې هم ویل شوي دي چې شیطان غواړي په شرابو سره او په قمار سره ستاسې په مینځ کې دښمني پیدا کړي نو ددې وجې نه په سختي سره حرام دي همدارنګه د قمار ټول صورتونه حرام دي حتی هغه شیان چې وربانديې قیمار کیږي که هغه لوبې د قیمار نه بغیر څوک کوي هم حرامې دي لکه قطعې (کیتې) او داسې نور پدې اړه خبرې زمونږ د فقهي کتابونو په اومه برخه کې په تفصیل سره تېرې شوې دي .

نو څرنګه چې نشه د قتل سبب کیږي نو انسان باید له نشې څخه ځان وساتي او له دې نه ځان وساتي چې دده په عقل کوم شی غالب شي او دده عقل مغلوب کړي او بیا په ده باندې د لیونیانو حرکتونه وکوي او په ده باندې داسې اعمال اجراء کړي چې بیا وروسته دی ورڅخه پښېمان وي یو حکیم ته چا وویل : ته شرابې ولې نه څښې؟ ده ورته وویل زما نه خوښیږي چې په ماښام کې داسې وم لکه د خلکو سردار (ټول خلک راته په درنده سترګه ګوري) په سحر کې د ټولو خلکو نه احمق او کم عقل وم (د شپې شراب و څښم صبا بیا داسې کارونه کوم لکه کم عقلان یې چې کوي) .

او هغه کس چې يو ځل په نشه يي توکيو آميخته شي هغه ته بيا پرېښودل اسان نه وي خو په اول کې به صبر او تحمل په ځان کې پيدا کول غواړي ترڅو انسان له هغه نه صبر شي او د هغه ملګرو سره پرېکړه کول په کار دي چې د کومو سره انسان په شريکه دا توکي استعمالوي او هغه ځايونو ته به انسان له ورتلللو څخه ځان ساتي چې په هغه ځای کې به ده دا توکي استعمالول ترڅو د هغه ځای له امله ده ته بيا ور په ياد نشي او بايد هر وخت فکر وکوي چې ترڅو ما نشه يي توکي استعمالول زه په يو ډول مرګ کې وم او بېرته مې چې پرېښي دي يو ډول نوې زندګي مې شروع کړېده چې تر هغې پخوانۍ زندګي نه ډېره غوره او ښه ده بايد قدر يې وکوي او بېرته ځان ته هغه مرګ را نه ولي چې دی اوس ورڅخه خلاص شوی دی .

هغه کس چې په نشه يي توکيو آميخته وي بايد ځان ته آخرت او د هغه عذابونه او نعمتونه ور په ياد کړي او فکر وکوي چې په دنيا کې دا د يو څو دقيقو مصنوعي راحت دده او د آخرت د ابدي راحت په مينځ کې يو ډول پرده جوړوي انسان بايد ورڅخه ځان وساتي او دومره ساده نه شي چې دا يو ډول مصنوعي او لنډ مهال راحت واخلي او د آخرت ابدي او همېشنی راحت وربانديې هېر کړي الله فرمايي : **وَابْتَغِ فِيمَا آتَاكَ اللَّهُ الدَّارَ الْآخِرَةَ وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا وَأَحْسِن كَمَا أَحْسَنَ اللَّهُ إِلَيْكَ وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ فِي الْأَرْضِ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ (77)** . [1]

ترجمة : او وغواړه په هغه (دولت) چې درکړی دی تاته الله کور د آخرت او مه هېروه برخه خپله له (مال د) دنيا او احسان کوه (له بندګانو د الله سره په ورکړه د مال) لکه چې احسان کړی دی الله

---

[1] **سورة القصص**

له تا سره (چې داسې ډېر دولت ئې در کړی دی) او مه غواړه فساد (په تکبر ظلم بغی سره) په ځمکه کې بېشکه چې الله نه خوښوي فساد کوونکي.

# د قتل شپږم سبب د کفارو او فاسقانو سره مينه

د هغه کسانو سره مينه او له زړه نه د هغه کسانو اطاعت كول چې هغوی كفار دي او يا فاسقان دي اكثر د قتل سبب كيږي ځكه هغه كسان چې كافران دي په هغوی باندې شيطان پوره فتح حاصله كړيده او په هغوی باندې هروخت هغه څه كوي چې شيطان يې غواړي نو هغه كسان چې د هغه پوره اطاعت وكوي خامخا به هغوی ورته د چا معصوم په قتل امر كوي همدارنگه هغه مسلمانان چې هغوی فاسقان دي هغوی ته د انساني ژوند څه قدر نه وي ډېر ځله د هغوی اطاعت كول هم په انسان باندې د يو معصوم انسان قتل كوي .

په اسلامي تاريخ كې يې ژوندی مثال يو دادی چې د رسول الله ﷺ له راتلو وړاندې په مدينه منوره كې دوه قبيلې اوس او خزرج له ډېره وخته يو د بل دښمنان وو او په مينځ كې يې په سلگونو مړي شوي وو خو چې كله د رسول الله ﷺ مبارك قدم په مدينه منوره كې كېښودل شو هغوی دواړه سره دوستان شول او زړې تولې خبرې يې هېرې كړې او دواړه د اسلام تر يو بيرغ لاندې لكه ورونه داسې سره تول شول خو په مدينه منوره كې يهود وو چې د هغوی د شيطانت نه بغير بل كار نه وو نو هغوی به كوښښ كاوه چې په مسلمانانو كې ملگري پيدا كړي او بيا هغوی ته په خبرو كې ور په ياد كړي چې د هغه پلار څه وخت ووژل شو؟ ولی ووژل شو؟ چا ووژلو؟ نو پدې سره بېرته د دوی په زړونو كې يو د بل لپاره دښمني او د يو بل

قتل ته ارادې را ژوندئ کړي او دا د دوی یو صف چې د اسلام تر بیرغ لاندې جوړ شوی دی بېرته سره ړنګ کړي د اوس او خزرج په مینځ کې تر اسلام وړاندې یو لوی جنګ شوی وو چې حرب بعاث یې ورته ویل ګڼ کسان پکې وژل شوي وو او په آخر کې میدان خزرج قبیلې ګټلی وو او اوس ته یې ماتې ورکړې وه خو آخر دا ټول مړي شوي د څه لپاره وو؟ صرف د قبیلې په نوم د غیرت لپاره خو وروسته تردې چې دواړه قبیلې په اسلام کې داخلې شوې وې یوه ورځ شاس بن قیس الیهودي د صحابه وو په مینځ کې ناست وو او د بعاث د جنګ واقعه یې مینځ ته را واچوله او پدې اړه یې په مجلس کې خبرې پیدا کړې نو صحابه چې هغه واقعه یې په یاد وه او دا هم ورته په یاد وو چې د دوی عزیزان او خپلوان په هغه جنګ کې وژل شوي وو نو په خبرو کې سره تېز شول بالآخره سره پاڅېدل او نېږدې وه چې جنګ شروع شي او یهودي همدا غوښتل دا خبر چا په منډه مهربان قائد او مهربان استاذ رسول الله ﷺ ته یوړو له هغه مبارک ﷺ سره په مجلس کې څه انصار او څه مهاجرین ناست وو د ټولو سره را پاڅېدو او را روان شو دې خلکو ته یې وویل : وروسته لدې چې تاسې ته الله په اسلام باندې عزت درکړو او زه ستاسې په مینځ کې یم تاسې د جاهلت په خبرو جنګ کوئ؟ وروسته لدې چې الله ستاسې په زړونو کې یو د بل لپاره الفت او مینه پیدا کړه تاسې دښمني کوئ؟ صحابه وو چې سرونه خپل ګریوان ته ښکته کړل نو پوه شول چې دا د شیطان دوکه او فریب وو چې مونږ ته یې راکولو او مونږ یې د یو مسلمان قتل او د هغه سره جنګ ته هڅولو او پدې پوه شول چې دا د همغه یهودي کار او مقصد وو زر یې سلاح ګانې په زمکه واچولې او یو بل ته یې غاړې سره ورکړې بیا له رسول الله ﷺ سره بېرته د پوره اطاعت سره را روان شول.

نو هغه کسان چې د الله نه سوا له بل چا سره مینه کوي او د هغوی اطاعت کوي هغوی باید پدې پوه شي چې دا ورته هیڅ فایده نه کوي د قیامت په ورځ به دوی له هر ډول دوستي نه بې برخې وي هغه کسان چې اوس کوم انسان ورسره دوستي کوي او هغه کوښښ کوي چې په ده باندې کوم غلط کار وکوي او یا وربانديې گناه وکوي نو په قیامت کې به بیا دده له دوستي څخه انکار کوي او نه به یې مني نو د اصل دوستي لائق یوازې او یوازې الله دی چې انسان ورسره مینه وکوي او که په دنیا کې هرڅوک انسان دېته هڅوي چې د الله نا فرماني وکوي باید انسان له هغه دوستي څخه تېر شي او الله ته مخه کړي او هغه څه وکوي چې الله وربانديې خوشحالیږي او که څوک له مسلمانانو سره مینه د الله لپاره کوي الله په هغه باندې هم خوشحالیږي او په مختلفو احادیثو کې هم د هغه چا ډېر فضائل یاد کړل شوي چې د الله لپاره یو له بل سره مینه کوي او په قرآن کریم کې هم انسان له کفارو سره له دوستي کولو څخه منع کړل شوي دي د مثال په ډول الله فرمایي : **لاَّ يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاء مِن دُوْنِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّهِ فِي شَيْءٍ إِلاَّ أَن تَتَّقُواْ مِنْهُمْ تُقَاةً وَيُحَذِّرُكُمُ اللّهُ نَفْسَهُ وَإِلَى اللّهِ الْمَصِيرُ (28)** .[1]

ترجمة **:** نه د نیسي مؤمنان کافران دوستان بې له مؤمنانو (یعني مؤمنان دې یو له بله سره دوستي وکړي) او هرڅوک چې وکړي دا (کار یعني دوستي له کفارو سره) نو نه دي (د ده تعلق) له (دین د الله د دوستي د) الله سره په هیڅ شي کې مگر (خو روا ده دغه دوستي) که ځان ساتئ تاسې له دوی نه په ځان ساتنه سره او ویروي تاسې

---

[1] **سورة آل عمران**

ﷲ له (عذاب د) نفس خپل نه او (خاص) طرف د ﷲ ته دي ورتله (ستاسې او د ټولو) .

## د قتل اووم سبب بغاوت

بغاوت دېته وايي چې څوک د يو مسلمان او عادل امام د اطاعت نه بغير د کوم صحيح دليل نه انکار وکوي او اکثر داسې حرکتونه په خپلو غرضونو باندې بناء وي نو بيا دوی د هغه مسلمانانو مرګونه کوي چې کوم د امام متابعت او اطاعت کوي ددې امله خو اسلام هم د هغه کسانو په قتل باندې امر کوي چې هغوی له خپل بغاوت څخه نه راګرځي او اطاعت نه کوي ترڅو په ملک کې امن راشي او فساد ختم شي .

هغه کس چې بغاوت وکوي او د اسلامي خليفه د حکم له منلو او اطاعت کولو نه انکار وکوي نورو مسلمانانو ته په کار ده چې د هغه سره همدردي وکوي او هغه ته نصيحت وکوي او هغه ته ووايي چې دا بغاوت بې ځايه دی او کوښښ وکوي چې هغه په نصيحت سره سمې لارې ته را وګرځوي او ور په زړه کړې چې ﷲ ويلي دي چې مؤمنان ټول سره ورونه دي دا ته چې د هر مسلمان قتل ته ملا تړې دا په اصل کې ته خپل ورور وژنې .

او هغه کس چې بغاوت کوي هغه بايد پدې پوه شي چې کله خليفه او امير مسلمان وي او عادل وي نو د هغه نه بغاوت ناروا دی او د هغه اطاعت کول لازم دي او که پدې حالت کې څوک مړه شي نو آخره خاتمه يې په خطر کې ده نو ددې امله بايد بغاوت ته څوک ملا ونه تړي نو دا چې د کوموقتلونو لپاره سبب کېدو د هغه قتلونو به مخه ونيوله شي .

## د قتل آتم سبب ددنيا مينه

د مال او دولت او دنیا مینه هم یو له هغه شیانو څخه ده چې ددې امله ډېر قتلونه کیږي دا هم په اوس وخت کې او هم په پخوا وختونو کې حتی چې د حضرت موسی په وخت کې یو وراره را پاڅېدو خپل تره یې ددې لپاره ووژلو چې د تره یې زیات مال وو او څوک یې وارث نه درلود نو وراره یې چې دده تر مرګه ورته انتظار نشوای کولی نو هغه یې ددې لپاره قتل کړو چې مېراث یې ټول ده ته پاتې شي او بیا یې د هغه مړی یوړو د نورو خلکو د کور سره یې واچولو صبا را پاڅېدو او په هغوی باندې یې د قتل دعوه وکوله غوښتل یې چې له یوه پلوه به له هغوی نه دصلح یا دیت په نوم څه مال واخلي او له بله پلوه به میراث ده ته پاتې شي صبا هغه خلکو د قتل نه انکار وکولو او پدې سره دواړه کورنی جنګ ته تیارې شوې په مینځ کې یو هوښیار سړی را پیدا شو ویل یې زمونږ په مینځ کې پیغمبر شته او مونږ جنګ ته تیاریږو؟ تر جنګ نه غوره خبره داده چې له پیغمبر نه مشوره واخلو چې ددې قاتل د ښکاره کولو لپاره مونږ څه وکوو؟ دوی ورغلل حضرت موسی ورته وویل : یوه غوا حلاله کړئ او د هغې څه برخه په مړي باندې ووهئ هغه به ژوندی شي او خپل قاتل به وښايي دوی همداسې وکول هغه مړی را ژوندی شو او ویې ویل چې دی خپل وراره قتل کړو نو لانجه همواره شوه خو قاتل له میراث نه له هغه ورځې نه محروم شو او د هغه نه وروسته بیا قاتل ته څوک میراث نه ورکوي او دا واقعه د بقرې په واقعه باندې مشهوره ده او په سورة بقرة کې ده او د همدې واقعې له امله ټول سورت ته سورة بقرة ویل کیږي .

او په اوس وخت کې خو دا ډول مرګونه ډېر زیات دي چې له چا سره ښکاره شي چې پیسې دي ورسره نو خلک یې ترې غواړي او که یې ورنه کړي نو دا مالک قتل کیږي همدارنګه د زمکې په سر باندې

هم ځوک قتل کیږي د میراث لپاره هم اوس قتلونه کیږي او تر هرڅه زیات خو لکه مخکې چې تېر شول د پیسو لپاره هم ځوک قتل کیږي یعني په مزدوري باندې هم خلک قتل کوي او هغه بیا دېته نه ګوري چې دا کس وژل کیږي دا رښتیا د قتل قابل دی او کنه ؟ ده څه داسې جرم کړی دی او کنه چې په سزا کې یې دی باید قتل شي ؟ ...

نو هغه ځوک چې د مال لپاره قتل کوي او یا د میراث لپاره قتل کوي هغه باید فکر وکوي چې دده نه دا مال پاتې شي دی به پدې مال څه وکوي؟ او دده به ځومره وخت عمر پاتې وي؟ آخر به له ده نه همداسې پاتې کیږي پدې دنیا کې مونږ صرف ددې لپاره ژوند کوو چې د خپل آخرت په اړه څه فکر او غم وکوو او د آخرت لپاره کار وکوو په دنیا کې الله زمونږ د روزي او هرشي ذمه واري کړېده هغه به یې راکوي ددې ضرورت نشته چې مونږ په ناروا باندې د مال طلب وکوو او پدې سره خپله دنیا زیاته کړو .

# د قتل نهم سبب د ښځو فتنه

د ښځو مینه او د هغوی فتنې په انسان باندې هر ډول ګناهونه کولی شي لکه زنا او داسې نور لوی ګناهونه لکه د چا قتل لکه د قابیل او هابیل قصه چې مخکې تېره شوه هلته هم د قتل په اسبابو کې د ښځې دخل وو او داسې تاریخ د ډېرو واقعو ګواه دی چې د یوې ښځې لپاره یو انسان د قتل جرم کړی وي او همدارنګه ډېرې واقعې داسې هم شته چې هلته ښځې چاته د چا د قتل لپاره ویلي وي او هغه یې وژلی وي ددې وجې نه خو رسول الله ﷺ هم فرمایي : **إِنَّ الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ، وَإِنَّ اللَّهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا، فَيَنْظُرُ كَيْفَ تَعْمَلُونَ؟ فَاتَّقُوا الدُّنْيَا، وَاتَّقُوا النِّسَاءَ، فَإِنَّ أَوَّلَ فِتْنَةِ بَنِي إِسْرَائِيلَ، كَانَتْ فِي النِّسَاءِ** .[1]

ترجمة : بېشکه دنیا خوږه ده او شنه ده او الله تاسې پکې خلیفه ګان کړي یاست ګوري چې تاسې څنګه عمل کوئ تاسې له دنیا څخه و ډار شي او له ښځو څخه و ډار شئ ځکه په بني اسرائیلو کې اوله فتنه په ښځو کې وه .

نو هغه کس چې د کومې ښځې لپاره یا د هغې په اشاره باندې قتل کوي نو باید پدې پوه شي چې د مسلمانانو لپاره په جنت کې پیدا کړل شوې حورې لدې ښځو نه پداسې اندازه ښائسته دي چې د مقایسې قابل نه دي او هغه داسې ښځې وي چې هر وخت ځوانانې او د ټول عمر لپاره لتا سره ملګرې وي نو ولې یو انسان دا موقت او ناقص شی واخلي او هغه دائمې او عالي شی وربانديې پرېږدي او ځان له هغه څخه محروم کړي؟ الله انسانان پدې دنیا کې ددې لپاره پیدا کړي دي چې د ځان لپاره د آخرت تیاری وکوي او هغه نعمتونه چې کامیابو انسانانو ته په آخرت کې

[1] رواه مسلم

ورکول کیږي لدې نعمتونو څخه ډېر او په څو چنده غور دي او که کومه ښځه کوم انسان ته د چا په وژلو باندې امر کوي نو انسان باید ورته ووايي چې ته د جنت له حورو نه شايسته نه يې چې زه ستا لپاره هغه پريږدم او د يو مسلمان ورور قتل وکوم چې هم په د نيا او هم په آخرت کې ابدي بد بخت شم .

## د قتل لسم سبب غصه

کله چې انسان ډېر غصه شي نو چا ته چې غصه وي په هغه يې که زور بر شي نو اکثر بيا انسان خپل ځان په واک کې ونشي ساتلی او هغه کس قتل کړي په اصل کې د انسان د ننه شيطان دی چې ده ته بيا بيا هغه خبره ور په يادوي چې له کومې نه دی غصه شوی دی ترڅو دده د غصې جوش په ارام نشي او بالآخره ورته وايي چې دا کس قتل کړه ځکه ده لتا سره دا زياتی وکولو او داسې خبره يې درته وکوله او کله چې د انسان نه غصه په قرار شي نو بيا انسان پوه شي چې دا يې ډېر بد کار وکولو او بيا شيطان هم ددې لپاره چې ده ته تکليف ورکړي ورته وايي ډېر بد کار د وکولو داسې کول نه وو په کار په دومره خبره د چا قتل کول نه وو په کار ته خو انسان يې سم ځناور يې .... خو بيا هغه وخت تېر شوی وي په هغه کس کې د روح اچول نا ممکن شوي وي ددې وجې نه خو الله د هغه کسانو ډېره ستاينه کوي چې هغوی خپلې غصې برداشت کوي او د غصې په وخت کې د انتقام اخيستلو نه ځان ساتي الله فرمايي :

**الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاء وَالضَّرَّاء وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ (134)** [1]

---

[1] سورة آل عمران آية ١٣٤

ترجمة : (متقيان هغه کسان دي) چې نفقه ورکوي (مال لګوي د الله په نامه) په خوښي (يا ارزاني يا شتمني کې) او تکليف (يا قيمتي يا تنګسه کې) او چې زغمونکي د قهر دي (سره له قدرته) او عفوه کوونکي دي له خلقو (چې پرې وکړي زياتی او ظلم) او الله خوښوي نيکي کوونکي.

الله په پورتني آيت کې هغه کسانو ته چې خپله غصه تېره کړي (څه عمل پکې ونه کوي او نه پکې د څه انتقام اخيستلو کوښښ وکوي) او له هغې نه وروسته بښنه وکوي نو د خپل محبت وعده وکوله چې هغوی ته به د الله محبت رسيږي ځکه هرڅوک چې ګناه نه کوي الله ورسره محبت کوي او هغه کسان چې غصه شي او دا غصه يې په سر کې شکته پورته کيږي او دی يې مخه نه نيسي نو هغه به دی انتقام او ځوابي عمل ته را پورته کړي او پدې توګه به دی د قتل اويا بلې ګناه مرتکب شي .

نو هغه کسان چې د غصې په وخت کې د قتل مجرم کيږي د غصې په وخت کې د ځان ته ور په ياد کړي چې دا غصه د يو څو دقيقو لپاره ده او د انتقام دا اور د يو څو دقيقو لپاره د انسان په زړه کې بل دی او که چېرته ددې امله قتل او يا کوم بل ځوابي عمل وکول شي نو بيا به ددې پښېماني تر ډېره وخته پورې په قرار نه شي او کله خو داسې وي چې د انسان تر مرګه پورې په هغه عمل باندې پښېماني دده ملګرې وي او خپل ځان ورته ملامت ښکاره کيږي او علاوه پردې کله خو بيا د هغه قتل په بدل کې دی هم قتل شي کله خو د مقتول خپلوان دی قتل کړي او کله خو که اسلامي حکومت وي نو دی به قصاص کړل شي نه يوازې دی بلکه دده ټوله کورنی به دده د لاسه غمجنه شي ...

## د قتل عمد (قصدي وژنې سزا)

لکه مخکې چې تېر شول د قتل عمد لپاره دوه ډوله سزا ګانې دي يو د آخرت او بله د دنيا د آخرت سزا الله ورته په قرآن کريم کې ښودلې ده الله ورته اعلان کړيده چې قاتل به په اور کې وي او په هغه به اندې به د الله غضب او لعنت وي او دی به پدې کې همېشه وي او په دنيا کې ورته دوه او د ځينې علماوو له نظره درى سزا ګانې دي په لاندې ډول :

**الف :** که مړی يې له خپلوانو څخه وو او ده ته يې ميراث پاتې کېدلو نو په قتل سره به دی له ميراث نه محروم شي او پدې باندې دليل د رسول الله ﷺ يو حديث دی چې فرمايي : **القاتل لا يرث** (قاتل به ميراث نه وړي) .[1]

**ب:** د امام شافعي او امام مالک د مذهب له مخې په ده باندې کفاره هم شته لکن د امام ابي حنيفه د مسلک له مخې کفارهورباندې نشته .

**ج:** وروسته لدې چې په شرعي توګه مرګ ثابت شي دا قاتل به په قصاص او بدل کې وژل کيږي.

## قصاص

څرنګه چې اسلام يو داسې دين دی چې ددې لپاره راغلی دی چې انسان ته وښيي چې په څه ډول داسې ژوند وکوي چې دده لپاره په دنيا او آخرت کې ښه شي نو داسې قواعد او اصول يې ورته ايښي دي چې هر يو په سرو زرو د ليکلو وړ دی او په هغه اصولو کې چې هر يو کم شي نو د انسان د ژوند نتيجه يا په دنيا کې او يا په آخرت کې ورسره ناکاميږي يو له هغه زرينو اصولو څخه هم قصاص

[1] **سنن الترمذي**

دی چې کله یو انسان قصداً په ظلم سره ووژل شي نو وژونکی یې باید ووژل شي که چېرته دا قانون عملي نشي نو په جامعه کې به ډېره ګډه وډي راشي او د ډېرو خلکو ژوند ته به خطر وي او ډېر خلک به د امن او صلح په ارمان کې مړه شي نو ددې امله قصاص په اسلامي شريعت کې یو له هغه مؤثرو عواملو څخه ګڼل کیږي چې په جامعه او معاشره کې امن راولي ، په نفسونو کې قرار راولي ، او په معاشره کې شریکو خلکو ته ددې اجازه ورکوي چې د ورځې په ارام سره ورځني کارونه وکوي او د شپې په ارام سره خوب وکوي او همدا یو شی دی چې د انسان کرامت او د هغه قدر ساتي که په کومه جامعه کې قصاص نه وي هلته به د انساني نفس هېڅ قدر نه وي چې د هرچا خوښه وي چې هر څنګه یې خوښه وي داسې به یې تلف کوي او د هېڅ ډول عواقبو څخه به یې وېره نه وي او اسلام دا نه غواړي چې انسانان د لکه د ځناورو داسې ژوند وکوي چې کوم زورور وي هغه د له کمزوري سره هغه څه کوي چې دده خوښه وي بلکه اسلام غواړي چې په معاشره کې د هر شخص د بل شخص د ژوند او د هغه د انسانیت قدر وکوي او اسلام غواړي چې انسان باید داسې ژوند وکوي چې له نورو حیواناتو څخه بدل وي او په رښتیا معنی کې ژوندی وي او پدې قسم ژوند سره خو الله وایي چې ما انسان ته له نورو مخلوقاتو څخه زیات قدر ورکړی دی او په ډېرو موجوداتو مې هغه غوره کړی دی الله فرمایي : **وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنَاهُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى كَثِيرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلاً (70).** [1]

ترجمة : او خامخا په تحقیق ډېر عزت ورکړی دی مونږ اولاده د آدم ته او سواره کړي مو دي دوی پر مرکوباتو باندې په بر (وچه) کې او په

[1] **سورة الاسراء آية ٧٠**

بحر (سیند) کې او رزق روزي مو ورکړې ده دوی ته له طیباتو پاکیزه وو شیانو او غوره کړي مو دي دوی پر ډېرو له هغه چا چې پیدا کړي مو دي په غوره کولو (ډېرو) سره.

او دا کرامت او عزت انسان هغه وخت لاس ته راوړلی شي چې انسان د عدل او انصاف ژوند وکوي هغه کسان چې زورور دي هغوی له کمزورو سره همدردي او نرمي وکوي او په هغوی باندې هېڅ ډول زیاتی ونه کوي او که په معاشره او جامعه کې کوم کس داسې کار کوي نو د جامعې نور غړي دي ورته سزا ورکړي ترڅو بل څوک داسې کار ونه کوي او نه دا کس پدې وتوانیږي چې له بل چا سره هم داسې زیاتی وکوي نو ځکه الله فرمایي :
وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَاْ أُولِيْ الأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ (179) [1]

ترجمه : او تاسې لره دی په قصاص کې (لوی) ژوندون دی اې خاوندانو د عقلونو! له پاره د دې چې تاسې ځان وساتئ (له نا حقو وینو څخه) .

د علم النحو علماء فرمایي چې په پورتني آیت کې د قصاص لفظ سره الف لام راغلی دی معرفه یاد کړل شوی دی او د حیاة سره نه دی راوړل شوی او نکرة دی نو معنی یې داده چې په قصاص کې ستاسې لپاره یو ډول ژوندی دی چې ډېر لوی او معزز او د لوړې مرتبې لرونکی ژوند دی او بیا الله دا ښکاره کوي چې ددې ژوند په قدر او لوی والي باندې صرف د عقل خاوندان ښه پوهیږي ځکه خو فرمایي يَاْ أُولِيْ الأَلْبَابِ (ای د عقل خاوندانو) ..

لکن په زمکه باندې څرنګه چې انساني جوړ شوي قوانین ډېر خپاره شوي دي نو دا حکم خلکو بالکل له نظر نه غورځولی دی او هېڅرته نه عملي کیږي لدې امله په دیني کتابونو کې هم

[1] سورة البقرة

اکثر مونږ د هرې مسئلې په اړه اوږده بحثونه وینو او کله چې یو عالم دې بحث ته راځي نو خپلې خبرې را غونډې کړې معنی یې دا نه وي چې یو دیني لیکوال او عالم پدې بحث کې دلچسپي نه لري بلکه ددې امله وي چې هغه عالم له خلکو څخه نا امیده وي چې دا خبرې عملي کړي او ددې خبرې زیات احساس ماته هلته وشو چې دا لیکنه ما کوله او لویو لویو کتابخانو ته لاړم چې د قصاص په اړه څه تصنیفات وګورم داسې څه په لاس رانغلل چې زما تنده یې ماته کړې وای زه به خپل کوښښ وکوم چې پدې موضوع باندې لوستونکي ته ښه معلومات مخې ته کېږدم او پدې لاره کې د لوستونکي دعاء او د الله مرسته زما دواړه ملګري دي ...

## د قصاص تعریف

قصاص په لغت کې:

القَصُّ په عربي کې د چا په قدم پسې تللو ته وایي الله په قرآن کریم کې فرمایي **فَارْتَدَّ عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصاً** (یعني دوی خپل آثار په لاره لټول او په قدمونوپسې بېرته راتلل په قرآن کریم کې د حضرت موسی د مور په واقعه کې راغلي دي چې هغې خپلې لور ته فرمایل **وَقَالَتْ لأُخْتِهِ قُصِّيهِ** (ته دا موسی تعقیب کړه او په ده پسې لاړه شه چې آخر دا چېرته ځي) په عربي کې کیسی ته هم قصه ویل کیږي ځکه دا هم د یو چا اثر وي او نور خلک چې دا قصه بیانوي نو د هغه کس اثر تعقیب کوي او قصاص هم تعقیب کولو د ویني ته وایي په بدل سره نو قصاص بدل اخیستلو ته ویل کیږي.

قصاص په اصطلاح کې:

په اصطلاح کې علماء د قصاص تعریف داسې کوي
:القصاص عقوبة مقدرة شرعاً، ويتم بإعدام الجاني في جريمة القتل العمد الموجبة للقصاص. ومعاقبة الجاني بمثل ما ألحقه بالمجني عليه في جرائم الاعتداء على ما دون النفس الموجبة للقصاص .

ترجمه : قصاص يو معين عذاب دی چې شرعاً تعين شوی وي او پوره کيږي په اعدام د جنايت کونکي سره په قصدي قتل کې د کوم سره چې قصاص لازميږي او په هغه ځای کې چې قصاص نه لازميږي (لکه د هغه يې چې سترګه ور ړنده کړې وي يا يې غاښ ور مات کړی وي يا يې بل تر مرګ نه ښکته نقصان ور رسولی وي) په هغه ځای کې چې همدا کار له ده سره وشي نو قصاص پوره کيږي .

## قصاص تر اسلام وړاندې

تر اسلام وړاندې په نورو امتونو کې هم د قصاص نظريه وه خو څرنګه چې هغه قوانين خلکو په خپله جوړ کړي وو نو پوره نه وو او نه څه غوره طريقه به وه زه يې تاسې ته مثال وړاندې کوم چې په بابل ښار کې د قصاص په ډول قانون ډېر مخکې جوړ شوی وو کله به چې چا د بل چا غاښ مات کړو يا به يې سترګه ورته وويسته او يا به يې کوم اندام ورته شل کړو نو همدا کار به ورسره کېدو د هغه به هم سترګه ويستل کېده غاښ به يې ماتېدو او اندام به يې ورته شل کول کېدو او که به کور وغورځېدو او په هغه کې به يو اوسيدونکی مړ شو نو انجينر او د کور جوړوونکی به وژل کېدو ، او که به چا يو شی واخيستل د هغه له امله به د مشتري زوی مړ شو نو د خرڅوونکی زوی به يې وژلو همدارنګه که به کور وغورځيدو د اوسيدونکي زوی به پکې مړ شو نو د کور جوړوونکي زوی به يې مړ کولو همدارنګه که به چا د چا زوی او يا لور مړه کړل هغه کس به را پا څېدو دده زوی او يا لور

به يې مړه کوله (چې پدې ټولو قضيو کې به په دواړو طرفونو کې معصومين وژل کېدل) بيا د وخت په تېرېدلو سره دا وژل کم شول او ددې په ځای باندې تاوانونه ورکول رواج شول چې چا به هرڅنګه جرم وکولو هغه ته تاوان مقرر شو دی به او يا به دده خپلوان نه وژل کېدل د هغې په ځای به په ده باندې تاوان مقرر کېدلو او جرمانه به ورڅخه اخيستله کېده خو هغه تاوان يو ډول نه وو يو خو له اندامونو سره بدليدو د مثال په ډول د سترګې بېل تاوان وو او د غاښ بېل وو د يو مالدار د سترګې او غاښ به بېل قيمت وو او د غريب به بېل قيمت وو نو کله به چې په تاوان او جرمانه فيصله کېده نو دې حالاتو ته به هم پکې کتل کېدل او يو څه نورې سزا ګانې يې هم عجيبې وې که به چا د چا په پلار وار وکولو او د هغه بې عزتي به يې وکوله هغه به دده په خلاف عريضه وکوله نو په فيصله کې به دده لاس پرې کول کېدو ، که به يو طبيب د چا علاج کولو او پدې وخت کې به يې هغه ته ضرر ورسولو او دده علاج به په هغه باندې بد ولګېدو نو د طبيب ګوتې به پرې کول کېدلې ، که به قابلې (هغه ښځه چې د ماشوم په پيدا کېدلو کې له ښځې سره ناسته وي) ماشوم بدل کړو نو د هغې سينې به پرې کول کېدلې او نور داسې جرمونه وو چې د هغې سزا صرف مرګ وه لکه د ښځې په عزت تېری کول ، ماشوم تښتول ، لارې پرې کول ، تښتيدلي غلام ته ځای او پناه ورکول، د جنګ له ميدانه تښتېدل ، د خپلې وظيفې بد استعمال ددې ټولو او نور هم ډېر کارونه وو چې سزا يې مرګ وه دا يو قانون وو چې تر ميلاد وړاندې په بابل کې جوړ شوی وو او په کانې باندې ليکل شوی وو او ۲۸۲ مادې يې درلودې او تر ډېره وخته پورې په ډېرو ځايونو کې عملي وو .[1]

---

[1] ول ديورانت: قصة الحضارة / ص258

# په یهودو کې قصاص

په یهودو کې هم د قصاص ماده شته د هغوی د یو کتاب عبارت دی : که یې د وسپنې په آله ووهلو او هغه مړ شو نو وهونکی قاتل دی قاتل به قتل کیږي که یې پداسې تیږه وویشتو چې په هغه تیږه ویشتل د مرګ سبب کیږي نو ویشتونکی قاتل دی قاتل به قتل کیږي هغه کس چې د مړي ولي دی هغه به قاتل وژني چې کله هم پرې بر لاسی شي که یې په غصه کې تیله کړو او یا یې کوم شی پرې ور وغورځول او یا یې له دښمني سره په لاس ووهلو او هغه مړ شو نو وهونکی به قتل کیږي د مړي ولي به هغه وژني چې کله هم پرې بر لاسی شي او که چېرته یې بغیر له دښمني څخه تیله کړو او یا یې تیږه یا بل شی پرې ور وغورځول خو ده هغه کس لیدلی نه وو هغه لدې سره مړ شو نو دا کس د هغه دښمن نه ګڼل کیږي .[1]

په یهودو باندې د قصاص حکم په نفس او تر نفس ښکته لکه د سترګې په ړندولو یا غاښ ماتولو کې هم وو لکن یهودو لکه دوی ته تول نازل شوي احکام داسې قصاص ته هم شا کړه او الله دوی په سختي سره له قتل نه منع کول او دوی ته یې وعیدونه ورکول الله په قرآن کریم کې په یو ځای کې فرمایي : **مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ كَتَبْنَا عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ أَنَّهُ مَن قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا .**[2]

ترجمه : په سبب د دې (قتل) لیکلي وو (حکم کړی ؤ) مونږ پر بني اسرائیلو (اولاده د یعقوب) چې بېشکه شان دا دی هرڅوک چې ووژني یو نفس بې له (عوض، بدل د) بل نفس نه (یا بې) له فساده په

[1] العهد القديم ــ سفر العدد/الإصحاح35/ص274 ، 275
[2] سورة المائدة آية ٣٢

زمکه کې (چې په ملک کې یې فساد کړی وي) نو ګواکي وژلي ئې دي خلق ټول او هر چا چې ژوندی کړو دغه (یو نفس چې سبب شي د ژوندون یې) نو ګواکي ژوندي کړي ئې دي خلق ټول.

## تر اسلام وړاندې په عربو کې قصاص

په عربو کې تر اسلام وړاندې هم قصاص موجود وو دوی هم څه قوانین درلودل چې د هغې له مخې به یې د قصاص فیصلې کولې لکن په دوی کې داسې قانون وو چې که به د قبیلې یو کس جُرم وکولو نو ټوله قبیله یې ذمه واره وه او د هغه مړي د اولیاوو لپاره ددې قبیلې هر کس دښمن وو مګر که به په قبیله کې کوم بد عمل انسان وو نو ددې قبیلې خلکو به په عمومي توګه له دي کس نه برائت اعلان کړو چې مونږ دده نه ملاتړ کوو او نه یې د کوم عمل ذمه وار یو نو بیا به هغه کس یوازې د خپل عمل ذمه وار وو او بیا د هغه وژل هم ډېر اسان وو په هغه وخت کې چا دېته نه کتل چې د یو کس وژل د الله په وړاندې بده خبره ده او یا د معاشرې لپاره بده خبره ده بلکه هغوی به دېته کتل چې ددې کس لویه قبیله ده او د هغوی سره دښمني کول بیا سخت دي خو که به د یوې قبیلې یو کس څوک مړه کړل د مړ شوي د قبیلې خلکو به یوازې د قاتل څخه نه بلکه د قاتل له قبیلې څخه د بدل او قصاص اخیستلو کوښښ کاوه که به یې د هغه قبیلې نه یو کس مړ کړو نو بیا هم د دوی زړه یخېدلو لدې امله خو به اکثر داسې کېدل چې د یو کس د مرګ نه به د دوو قبیلو په مینځ کې دښمني جوړه شوه او کله به داسې هم کېدل چې قصاص به په نظر سره قبیلې ته بدلېدلو او که د کومې شریفې کورنۍ به له کومې کمزورې کورنۍ سره لانجه وه نو د شریفې کورنۍ خلکو به ویل چې که په مونږ کې ښځه مړه کیږي د هغې په بدل کې به له دوی نه یو سړی

وژنو او که په مونږ کې غلام مړ کیږي له دوی نه به مونږ اصیل انسان وژنو او که له مونږ نه یو اصیل وژل کیږي مونږ به له دوی نه دوه کسان اصیلان وژنو ...

بل به په هغه وخت کې د قبیلې د یو کس مرسته کول ضروري وو دا څه خبره نه وه نه چا دېته نظر کولو چې دا کس چې مونږ یې مرسته کوو ظالم او که مظلوم دی دی په حقه او که هغه څوک په حقه دی چې دده ورسره دعوا او لانجه ده حتی چې چا به څه جنایت وکولو سره ددې چې ظالم به هم دی وو او جنایت به هم ده کړی وو لکن دده قبیلې به له ده څخه حمایت کولو او د مقابل لوري سره به یې دښمني کوله .

نو پدې سلسله کې به په کلونو کلونو د دوو قبیلو په مینځ کې دښمني روانه وه او په زرګونو مړي به له دواړو اړخونو څخه کېدل او له دواړو ډلو څخه به ځوانان د قومي غیرت له مخې ناروا جنګ ته د جاهلیت له جذباتو سره وړاندې کېدل او وژل کېدل به ... ځکه خو الله د دوی دې او دېته ورته نورو جهالتونو ته اشاره کوي او فرمايي چې تاسې بالکل د اور په ژۍ باندې وئ خو الله تاسې ته نجات درکړو د اسلام رڼا یې تاسې ته در ورسوله چې ورسره ټولې نا روا دښمنۍ ختمې شوې الله فرمايي : **وَاعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ اللّهِ جَمِيعًا وَلاَ تَفَرَّقُواْ وَاذْكُرُواْ نِعْمَةَ اللّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاء فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنتُمْ عَلَىَ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا كَذَلِكَ يُبَيِّنُ اللّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ (103)** . [1]

ترجمه : او منګولې ولګوئ (اې مؤمنانو!) په رسۍ د الله (چې قرآن دی) ټول او مه سره مختلف کېږئ (وروسته له اسلامه) او یاد کړئ تاسې (اې

[1] **سورة آل عمران**

مؤمنانو!) نعمت (احسان) د الله پر تاسې کله چې وئ تاسې دښمنان نو الفت (مينه) ئې پيدا کړه په مينځ د زړونو ستاسې کې نو وګرځېدئ تاسې په نعمت (رحمت) د الله سره (اسلامي) ورونه او وئ تاسې په غاړه د کندې له اوره (د دوزخ په سبب د ګمراهي او کفر) نو خلاص ئې کړئ تاسې له هغه (اوره په اسلام سره) هم داسې (لکه چې د اتفاق مفاد او د نفاق ضرر ئې بيان کړل) بيانوي الله تاسې ته دلائل (د قدرت) خپل له پاره د دې چې تاسې په سمه صافه لاره ثبات او دوام ومومئ!.

## په عيسائيت کې قصاص

په عيسائيت کې هم د قصاص حکم شته خو عيسائيت زور په عفو ورکوي حضرت عيسى به ويل : چا چې په يو مخ وهلئ تاسې ورته د مخ بل طرف هم ور اړوئ کله چې خلک وايي چې العين بالعين تاسې هغې ته مه ګورئ بلکه تاسې بښنه کوئ نو په عيسائيت کې ډېر زور په بښنه باندې شوی دی .

## په اسلام کې قصاص

نو په نظر سره دې پورته ټولو قصاصونو او قوانينو ته د اسلام د مقدس دين د قصاص حکم ښکاره کيږي چې تر ټولو غوره قانون دی لکه تاسې په يهوديت کې د قصاص حکم وکتلو هلته د مړي وارثانو ته صرف يو اختيار دی چې هغه بايد له قاتل نه قصاص واخلي ، او د بابليانو په قصاص کې ډېر ناروا قتلونه وو ، د عربو په قبيلوي قانون کې ډېر ځله د يو قتل له امله ناروا قتلونه کېدل او د عيسائيت په قصاص کې ډېره نرمي وه او ډېر زور په بښنه وو لکن د اسلام دين د قصاص داسې حکم راوړو چې يو طرف ته هم پکې ظلم نشته او د مړي وارث خو نه پدې مجبور دی چې خامخا به قصاص اخلي او نه خو څوک

دېته مجبور کوي چې خامخا یې وبښي بلکه دده اختیار دی که ورڅخه قصاص اخلي او که ورته بښنه کوي همدارنګه دی نشي کولی چې د قاتل په ځای بل څوک د هغه ورور یا زوی او یا د کورنۍ بل کس ووژني همدارنګه که وژل شوی کس هرڅومره شریف وي د هغه په بدل کې به یوازې یو کس وژل کیږي هغه هم چې کله مرګ د اسلامي شریعت مطابق ثابت شي او د پوره ایمانداري سره به په هغه ډول وژل کیږي په کومه طریقه یې چې قتل کړی وي او هیڅ ډول ظلم به وربانديې نه کیږي .

## په اسلام کې د قصاص صورت

قصاص په اسلام کې څنګه فرض دی؟

امام قرطبي فرمايي : **هوأن القاتل فرض عليه إذا أراد الولي القتل، الاستسلام لأمر الله، والانقياد لقصاصه المشروع، وأن الولي فرض عليه الوقوف عند قتل قاتل وليه، وترك التعدي على غيره، كما كانت العرب تتعدى فتقتل غير القاتل .** [1]

ترجمه : شان دادی چې که د مړي ولي وغواړي چې له ده نه قصاص واخلي په قاتل باندې فرض دي چې د الله امر ته غاړه کیږدي او قصاص ته تسلیم شي او د مړي په ولي باندې فرض دي چې هغه یوازې د خپل عزیز قاتل مړ کړي او نور تجاوز او زیاتی ونه کوي لکه عربو به چې کول هغوی به د قاتل نه علاوه خلک هم مړه کول .

امام شعبي قتادة او نور علماء فرمايي : **إن أهل الجاهلية كان فيهم بغي وطاعة للشيطان؛ فكان الحي إذ كان فيه عزّ ومنعة فقتل لهم عبد؛ قتله عبد قوم آخرين قالوا: لا نقتل به إلا حراً، وإذا قتلت منهم امرأة قالوا: لا نقتل بها إلا رجلاً وإذا قتل لهم**

---
[1] تفسیر القرطبي

وضيع قالوا: لا نقتل به إلا شريفاً؛ ويقولون: (القتل أوفى للقتل) بالواو والقاف، ويروى (أبقى) بالباء والقاف، ويروى (أنفى) بالنون والفاء؛ فنهاهم الله عن البغي فقال: (كتب عليكم القصاص في القتلى الحر بالحر والعبد بالعبد) الآية، وقال: (ولكم في القصاص حياة) وبين الكلامين في الفصاحة والجزل بون عظيم .[1]

ترجمه : د جاهليت په خلکو کې بغاوت او د شيطان اطاعت وو يو کلی به داسې وو چې هغوی به زورور خلک وو او جنګيالي به يې درلودل کله به چې له بل کلي نه کوم غلام د دوی کوم غلام مړ کړو نو دوی به ويل ددې غلام په بدل کې به مونږ اوس اصيل وژنو او که له دوی نه به ښځه ووژله شوه نو دوی به ويل ددې په بدل کې به مونږ سړی وژنو که په دوی کې به د کمې مرتبې سړی ووژل شو نو دوی به ويل مونږ به اوس ددې په مقابل کې شريف وژنو او ويل به يې چې **القتل اوفی للقتل** په واو او قاف سره (ښه پوره کونکی) او يا په ب او ق سره ابقی يعني ښه پاتې کونکی او يا په ن او ف سره انفی يعني نفی کونکی او ختمونکی نو الله لدې تجاوز نه دوی منع کړل او د قصاص آيت نازل شو چې په تاسې باندې قصاص فرض دی په اصيل سره اصيل او په غلام سره غلام همدارنګه الله وفرمايل **وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ** (ستاسو لپاره په قصاص کې ژوند دی) او ددې خبرې او د دوی د خبرې (**القتل أوفى للقتل**) په فصاحت او اختصار او د معنی په پوره والي کې ډير لوی فرق دی .



[1] تفسير القرطبې

# قصاص په قرآن کريم کې

الله فرمايي :

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْأُنْثَى بِالْأُنْثَى فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ ذَلِكَ تَخْفِيفٌ مِنْ رَبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ فَمَنِ اعْتَدَى بَعْدَ ذَلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ (١٧٨).** [1]

ترجمه : اې هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی (اې مؤمنانو!) فرض کړل شوی دی په تاسې باندې قصاص (برابر والی) په وژليو شويو کې (که عمداً وي) اصيل په اصيل باندې (قصاصيږي) او مريی په مريي باندې (قصاصيږي) او ښځه په ښځه باندې (قصاصيږي) نو هغه څوک چې عفو وکړه شي (مصلحتاً) ده ته له (قصاصه د اسلامي) ورور د ده نه څه شی نو لازمه ده (په دې عفو کوونکي) مطالبه د ديت (له قاتله) په ښه وجه سره او ورکول (د ديت دي) هغه (عفوه کوونکي) ته په ښه وجه سره دا کار (د قصاص جوازي يا ديت يا عفوه) آساني ده له (طرفه) د رب ستاسې او مهرباني ده (چې اختيار ئې تاسې ته درکړ) نو هر چا چې زياتوالی وکړ (په ظلم او وژلو د قاتل) وروسته له دې فيصلې (چې ديت يا عفوه ده) نو ده لره دی عذاب دردناک (د دوزخ په عقبی کې او قصاص دی په دنيا کې) .

په بل ځای کې الله فرمايي :

**وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ (179).** [2]

---

[1] سورة البقرة
[2] سورة البقرة

ترجمه : او تاسې لره دی په قصاص کې (لوی) ژوندون اې خاوندانو د عقلونو! له پاره د دې چې تاسې ځان وساتئ (له نا حقو وینو څخه) .

په بل ځای کې الله فرمایي :

الشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَالْحُرُمَاتُ قِصَاصٌ فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ (١٩٤). [1]

ترجمة :میاشته حرامه په بدل د میاشتې حرامې کې ده او تعظیمونه (ددې شیانو) سره برابر دي پس هر چا چې تیری وکړ پر تاسې باندې نو تاسې هم تېری کوئ! په هغو باندې په شان د هغه چې تېری ئې کړی وو پر تاسې باندې او وویرېږئ له الله څخه! او پوه شئ! چې بېشکه الله له پرهېزګارانو سره دی (په علم او نصرت سره) .

په بل ځای کې الله فرمایي :

وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ (٤٥). [2]

ترجمه : او لیکلي (فرض کړي) وو مونږ پر دغو (یهودانو) په دې ((تورات)) کې چې بېشکه نفس دې ووژلی شي په (بدل د بل) نفس کې او سترګه دې (ړنده شي) په (بدل د بلې) سترګې او پوزه د (پرېکړه شي) په (بدل د بلې) پوزې او غوږ د (پرېکړل شي) په ((بدل د بل)) غوږ او غاښ دې (وویستلی شي) په (بدل د بل) غاښ کې او پرهارونه قصاص (بدل) دي برابر نو هر چا چې

---

1 سورة البقرة
2 سورة المائدة

عفوه وکړه ددې قصاص نو دغه عفوه کفاره ده ده ته (یعني دی په دغې عفوې سره له گناه پاکیږي) او هر چا چې ونه کړ حکم په هغه شي چې نازل کړي (لېږلي دي) الله نو دغه کسان هم دوی دي ظالمان .

په بل ځای کې الله فرمایي :

**وَلا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُوماً فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَاناً فَلا يُسْرِفْ فِي الْقَتْلِ إِنَّهُ كَانَ مَنْصُوراً** (٣٣). [1]

ترجمة: او مه وژنئ تاسې نفس هغه چې حرام کړي دي الله (وژل د هغه) مگر په حقه سره (چې ارتداد او زناء مع الاحصان او قصاص دی) او هرڅوک چې ووژل شو په دې حال چې مظلوم وي نو په تحقیق گرځولی دی مونږ د پاره د وارث د هغه زور (او قوت چې له قاتل څخه انتقام اخیستی شي) نو اسراف د نه کوي په قتل کې (چې غیر حق بل څوک وژني بې له قاتله) په تحقیق دغه (وارث) دی مدد ورسره کړل شوی .

[1] سورة الاسراء

# قصاص په احاديثو کې

مخکې د يوې جارۍ قصه تېره شوه حضرت انس بن مالک فرمايي: يو يهودي يې سر په تېږه ويشتلى وو او مړه کړې يې وه رسول الله ﷺ ته پداسې حالت کې راوړل شوه چې لا ژوند پکې وو رسول الله ﷺ ورته وويل : فلاني مړه کړې؟ (يعنې دې حالت ته يې را ورسولې چې اوس مرګ ته نېږدې يې؟) هغې سر پورته نيولى وو او داسې يو يو کس يې ورته حسابولو چې په چا باندې شک کېدلو آخر يې چې د يو يهودي نوم ورته واخيستلو هغې سر پرې ښکته کړو هغه رسول الله ﷺ را وغوښت بيا يې په همدې ډول باندې مړ کړو (سر يې ورته د دوو کاڼو تر مينځ کړو) .[1]

همدارنګه د حضرت ابي هريره نه روايت دى هغه فرمايي : د فتح په کال باندې خزاعة قبيلې يو کس له بني ليث قبيلې څخه د هغه مړي په بدل کې ووژلو چې د جاهليت په زمانه کې شوى وو رسول الله ﷺ پاڅېدو او خطبه يې شروع کړه ويې فرمايل : الله له مکې نه فيل منع کړى وو او رسول او مؤمنين يې وربانديې مسلط کړل خبردار نه زما نه مخکې چا ته حلال وو (حرم) او نه به زما نه وروسته چا ته حلال شي (بلکه له ما نه په مخکې خلکو هم لازم وو چې د حرم خيال وساتي او لما نه وروسته هم چا ته نه دي روا چې د حرم په احترام باندې تېرى وکوي) خبر دار زما لپاره حرم حلال شو د ورځې په څه برخ کې (د يوڅه وخت لپاره کله چې مکه فتح کېدله) خبر دار زما پدې اوس ساعت کې دا حرامه ده ددې به ازغى هم نه ويستل کيږي ، ونه به يې نه پرې کول کيږي او

[1] فتح الباري ج ١٤ ص ١٨٢

په زمکه چې په حرم کې څه شی پراته وي څوک به یې نه ا خلي مګر هغه چې اواز پسې وکوي او د مالک د پیدا کولو کوښښ یې کوي د چا په خپلوانو کې چې څوک ووژل شي بیا دده اخیتار دی او دی په دوو خبرو کې اختیارمن دی یا به ده ته دیت ورکړل شي او یا به قصاص واخلي د یمن یو کس چې ابو الشاة ورته ویل کېدل پاڅېدو ویل یا رسول الله ﷺ دا ماته ولیکه رسول الله ﷺ وویل : ابي الشاة ته دا خبره څوک ولیکئ بیا له قریشو نه یو کس پاڅېدو ویل یا رسول الله ﷺ د اذخر د پرې کولو اجازه هم نشته دا خو مونږ پرې کوو په خپلو کورنو او په قبرونو کې یې ایږدو بیا رسول الله ﷺ ورته وویل : بغیر د اذخرنه .. [1]

په ابي داود کې حدیث دی :

له حضرت ابي شریح الکعبي نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **ألا إنكم يا معشر خزاعة قتلتم هذا القتيل من هذيل، وإني عاقله، فمن قُتل له بعد مقالتي هذه قتيل فأهله بين خيرتين: إما أن يأخذوا العقل أو يقتلوا** . [2]

ترجمه : خبردار د خزاعة قبیلې خلکو دا کس تاسې د هذیل قبیلې نه وژلی دی او زه د هغه حق غوښتونکی یم زما ددې خبرې نه وروسته چې د چا خپلوان او عزیز ووژل شي دده خوښه ده یا د دیت واخلي او یا د هغه کس ووژني .

حضرت ابن عباس فرمایي :

---

[1] **فتح الباري/ج14/ ص188**
[2] **سنن أبي داود**

په مدينه منوره کې د يهودو دوه قبيلې وې يو ته يې بني النضير او بل ته يې بني قريظة ويل او په دوی کې بني النضير له بني قريظة څخه شريفان او معزز وو نو که به د بني قريظة نه چا په بني النضير کې مړی وکړو نو دی به وربانديې وژل کېدو او قصاص کېدو به او که به عکس شو (د بني النضير کوم کس به په بني قريظة کې څوک ووژل) نو يوازې يو څه (۱۰۰ وسقه) خورما به يې صدقه کړې او د دوی په گمان بيا به له گناه نه خلاص شو کله چې رسول الله ﷺ راغلو تر هغې وروسته د بني النضير نه يو کس پاڅېدو په بني قريظة کې يې بل کس ووژلو د بني قريظة خلکو ورته وويل : دا مونږ ته راکړئ مونږ يې وژل غواړي (قصاص ورڅخه اخيستل غواړو) او که يې نه منئ نو راځي پيغمبر موجود دی فيصله به ترې وغواړو کله چې رسول الله ﷺ ته راغلل په رسول الله ﷺ دا آيت نازل شول **وإن حكمت فاحكم بينهم بالقسط** (او که تا حکم کولو د دوی په مينځ کې نو په عدل سره د دوی په مينځ کې فيصله کوه او د عدل فيصله دا وه چې په قصاص کې شريف او غير شريف يو شان دي بيا بل آيت نازل شو چې الله فرمايل : **أفحكم الجاهلية يبغون** (آيا دوی د جهالت حکم غواړي؟) [1]

بل حديث دی :

حضرت ابي شريح الخزاعي فرمايي : رسول الله ﷺ فرمايل : **من أصيب بقتل أو خَبْل فإنه يختار إحدى ثلاث: إما أن**

[1] **سنن ابي داود**

يقتص، وإما أن يعفو، وإما أن يأخذ الدية، فإن أراد الرابعة فخذوا على يديه، ومن اعتدى بعد ذلك فله عذاب أليم .[1]

ترجمة : چاته چې قتل ورسېدو (کوم خپلوان او عزيز يې ووژل شو) او يا زخم نو ده ته اختيار دى په دريو کې د يو وکوي يا د له هغه نه قصاص واخلي هغه د ووژني او يا د ورته بښنه وکوي او يا د ديت واخلي که ددې نه بغير يې کوم څلورم کارکولو نو لاس يې ونيسئ او که چا ددې نه وروسته تجاوز کولو (په دې دريو کې يې يو کار هم نه کولو او له خپله ځانه يې کوم څلورم کار کولو لکه د يو کس په بدل کې متعدد کسان وژل د قاتل په ځاى د هغه په کورنى کې بل کس وژل او داسې نور) نو هغه لره درناک عذاب دى .

## د قصاص حکمت

الله په خلکو کې قصاص شرعي کړى دى ترڅو د بدې ، لويې او سختې ګناه يعنې قتل مخه ونيوله شي او د هغه څه ساتنه وکوله شي چې په ټولو اسماني دينونو کې يې ساتل ضروري او لازم ګڼل شوي دي لکه د دين ساتنه ، د نسل ساتنه ، د انساني نفس ساتنه ، د امن او سکون ساتنه او د مال ساتنه او د شريعت څومره قوانين چې دي هغه ټول د انسانو په ګټه دي او په کومه معاشره کې چې د اسلام او قرآن حکمونه عملي شي نو ددې ټولو شيانو حفاظت او ساتنه پکې يقيني کيږي امام ابن قيم پدې اړه فرمايي :

فكان من بعض حكمته سبحانه ورحمته أن شرع العقوبات في الجنايات الواقعة بين الناس بعضهم على بعض، في النفوس والأبدان والأعراض والأموال، كالقتل والجراح والقذف والسرقة، فأحكم

[1] سنن ابي داود

سبحانه وجوه الزجر الرادعة عن هذه الجنايات غاية الإحكام، وشرعها على أكمل الوجوه المتضمنة لمصلحة الردع والزجر، مع عدم المجاوزة لما يستحقه الجاني من الردع، فلم يشرع في الكذب قطع اللسان ولا القتل، ولا في الزنا الخصاء، ولا في السرقة إعدام النفس. وإنما شرع لهم في ذلك ما هو موجب أسمائه وصفاته من حكمته ورحمته ولطفه وإحسانه وعدله لتزول النوائب، وتنقطع الأطماع عن التظالم والعدوان، ويقتنع كل إنسان بما آتاه مالكه وخالقه، فلا يطمع في استلاب غيره حقه. [1]

د انسانانو په جنايتونو کې چې ځینې یې په ځینو کوي د هغوی په نفسونو کې (یو بل وژني) یا په بدنونو کې (ځینې د ځینو کوم اندام نقصاني کوي یا یې تلف کوي) یا د هغوی په اعراضو کې یا په اموالو کې لکه قتل کول ، زخمي کول ، تهمت لګول ، غلا کول پدې ټولو کې د الله حکمت دادی چې خلک لدې کارونو څخه په سختې سره منع کړي او پداسې توګه دا ټول مشروع شوي چې په ښه توګه باندې ددې کارونو مرتکب ته زجر ورکول کیږي سره ددې چې جرم کونکی د کومې سزا مستحق وي تر هغې نه ورسره زیادت نه کیږي ځکه خو د الله په کتاب کې د هغه چا ژبه نه پرې کول کیږي چې درواغ یې ویلي وي او نه د هغه چا وژل ضروري شوي دي چې څوک دروغ ووایي (ځکه هغه ګناه وړوکې او که یې د هغې په بدل کې ووژنو نو سزا به یې لویه شي) همدارنګه شریعت داسې امر نه دی کړی چې چا زنا وکوله نو خصي د کړل شي او نه یې داسې حکم کړی دی چې چا غلا وکوله هغه د اعدام کړل شي بلکه د ټولو ګناهونو لپاره یې داسې سزا ټاکلې ده چې د الله د پاکو نومونو او پاکو صفاتو د هغه د حکمت، رحمت ، لطف ، احسان ، عد ل تقاضا ده ترڅو د مصیبتونو مخه ونیول شي او د ظلم او تجاوز طمع پرې کړل

[1] اعلام الموقعین

شي او كوم انسان ته چې خپل خالق او مالک څه وركړي په هماغه باندې صبر وكوي نو د بل چا د حق د قبض كولو بالكل طمع نه كوي .

د قصاص حكمتونه ډېر دي ځينې علماوو په لاندې توګه خلاصه كړي دي :

## لمړى حكمت

په قصاص كې د خلكو لپاره ژوند دى او د معاشرې لپاره پكې امن او سلامتيا ده لكه الله چې فرمايي : وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَاْ أُولِيْ الأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ (179) [1]

ترجمه : ترجمه : او تاسي لره دى په قصاص كې (لوى) ژوندون اې خاوندانو د عقلونو! له پاره د دې چې تاسې ځان وساتئ (له نا حقو وينو څخه) .

شيخ المفسرين طبري ددې آيت په تفسير كې فرمايي : الله دا قصاص يو ډول حيات او يو ډول عذاب ګرځولى دى عذاب او پند دى د جاهلانو او كم عقلانو لپاره ډېر ځله به يو كس د قتل اراده وكوي خو چې كله پوه شي كه زه دا قتل كړم زه به وربانديې قصاص كيږم نو بيا به په شا شي الله چې كوم امر په دنيا كې كړى دى داسې امر نشته چې په هغه كې د انسانانو د دنيا او يا د آخرت خير او صلاح نه وي او الله د داسې شي څخه منع نه ده كړې چې هغه د انسانانو لپاره په دنيا او يا آخرت كې ضررناک نه وي الله په هغه شي باندې ښه عالم دى چې د بندګانو لپاره پكې خير وي او هغه چې د بندګانو لپاره پكې شر وي . [2]

---

[1] سورة البقرة آية ١٧٩
[2] تفسير جامع البيان للطبري

امام طبريسي ددې آية په تفسير كې فرمايي : پدې آيت كې الله د قصاص لپاره يو حكمت بيانوي او فرمايي (وَلَكُمْ) او ستاسې لپاره اې مخاطبينو (فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ) په قصاص كې ژوند دى ددې په مطلب كې دوه رايې دي (لمړى رايه) داده چې معنى يې داده چې د قصاص په واجب كولو كې ستاسې لپاره ژوند دى ځكه څوك چې د چا د قتل اراده وكوي او بيا ور په ياد شي چې ددې قتل په ځواب كې به زه وژل كېږم نو بيا هغه قتل نه كوي امام مجاهد، امام قتادة او نورو ځينې علماوو دا رايه خوښه كړېده (دوهمه رايه) داده چې ددې مطلب دادى چې كله قصاص واقع شي او قاتل ووژل شي پدې كې ستاسې لپاره ژوند دى چې يوازې قاتل ووژل شو او شر ختم شوي داسې به اوس نه كيږي چې لكه د جاهليت په زمانه كې چې يو كس به قتل شو نو د هغې په بدل كې به د هغه د قوم خلك او د قبيلې خلك او خپلوان به وژل كېدل او لدې نه به دښمني جوړه شوه او له دواړو طرفونو به روان قتلونه كېدل دا دواړه معنى ګانې غوره او ښكلې دي .[1]

ابن كثير فرمايي : وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ الله فرمايي د قصاص په مشروعيت كې چې د قاتل قتل كول دي لوى حكمت دى د انسانيت ساتل دي ځكه كله چې قاتل پدې پوه شي چې دى وژل كيږي نو له خپل كار نه به مخ واړوي او قتل به ونه كوي .[2]

د المنار مصنف فرمايي : دې آيت دا ښكاره كړه چې اصل مطلب ژوند دى او قصاص د ژوند لپاره يوه وسيله ده ځكه هرڅوك چې پوه شي كه دى قتل وكوي نو دى وربانديې قتل كيږي نو د مرګ

---

[1] مجمع البيان في تفسير القرآن
[2] تفسير القرآن العظيم لابن كثير

کولو نه به وروسته شي نو د هغه چا ژوند به هم وساتل شي چې ده یې د قتل اراده کړې وه او دده خپل ژوند به هم وساتل شي او هغه کسان چې مالدار وي هغوی د دیت په ورکولو سره له مرګ نه نشي وروسته کېدلی او په دنیا کې داسې ډېر خلک شته چې د یو چا د وژلو لپاره ډېر مال مصرف کولی شي او په آیت کې یو عجیب قسم بلاغت پروت دی چې د قتل سزا ته یې اعدام او سزا ونه ویل بلکه ژوند یې ورته وویل کوم چې د هر نفس لپاره پکې دلچسپي وي .[1]

## دوهم حکمت

په قصاص کې د مظلوم سره او د هغه له خپلوانو سره یو ډول همدردي کول دي او د هغوی غصې په قرار کول دي او هغه څوک چې قتل وکوي که هغه مونږ هرڅومره د اوږده وخت لپاره بندي کړو د دوی زړونه تر هغه وخته پورې وربانديې نه یخیږي چې ترڅو هغه وژل شوی نه وي نو دقاتل په وژلو سره د هغوی زړونه یخ شي او د هغوی سره یو ډول همدردي وشي او د هغوی تسکین وشي او دا ډېر لوی حکمت دی .

---

[1] تفسیر المنار

# په قصاص باندې د غير مسلمو اعتراضونه

هغه کسان چې الله د هغوی زړونو ته د ايمان او اسلام رڼا ور ننه ايستلي وي هغوی خو په خوشحالي سره د الله د هر حکم او امر استقبال کوي لکن هغه کسان چې په زړونو کې يې د دنيا د بشر او انسانانو په لاسونو جوړو شويو قانونو ځای نيولی وي هغوی وايي :

## لمړی اعتراض

قصاص د قاتل لپاره ښه عذاب نه دی او دا په زړونو کې ترحم نه بلکه يو سخت والی ښکاره کوي په کار ده چې ده ته ښه تربيه ورکول شي او ده ته داسې ضمينه برابره کړل شي چې دی پوه شي او په خپلو کړو باندې پښېمان شي او دوی وايي چې حکومت په خلکو باندې ترحم وکوي لدې سره د خلکو تربيه کيږي او د خلکو ذهن خلاصيږي او څومره چې د خلکو ښه تربيه وشي نو دومره به هغوی ګناهونه پريږدي ضرورت نشته چې د يوې ګناه په بدل کې د چا ژوند ختم کړو دوی وايي د قتل نه وروسته بل قتل کول هغه څه دي چې انساني نفسونه ورڅخه کرکه او نفرت کوي او انسان بايد پخپله هم ډيره ښه وکوي او خلکو ته هم نصيحت وکوي چې دوی ښه ډيره وکوي او قصاص خو يو ډول انتقام اخيستل دي او ځينې يې لدې امله چې دوی د آخرت په عذاب باندې ايمان نلري وايي : موږ بايد مجرم ته د بنديخانې سزا ورکړو ترڅو د بنديخانې تکليفونه ووينې او په خپله ګناه باندې پښېمان شي موږ که دا مړ کړو نو ده هېڅ پښېماني ونه ليده او دېته ورته نورې هم خبرې کوي.

امام صابوني ددوی ځواب کوي او فرمايي :

د ځينې خلکو چې قانون يې خوښ دى او د انسانانو په لاسونو جوړ شوي قانونونه يې خوښ دي هغوى په قاتل باندې رحم کوي او وايي چې په کار نه ده چې دى ووژل شي زه هغوى ته وايم چې هغه چې ده په ظلم سره ووژلو هغه ډېر د ترحم لا ئق وو او که دا قاتل؟ ډېر ترحم په هغه په کار وو چې هغه وژل شوى دى او هغه کسان چې په قاتل باندې رحم کوي د هغوى لپاره به ډېره سخته شي چې زمکه د فساد نه پاکه کړي دا ټوله گناه د هغه کسانو ده چې مجرمانو ته په رحمت قائل دي هېڅ ډول نصيحت او هېڅ ډول ښه تربيه يو قاتل نشي کولى له قتل نه داسې منع کړي لکه قصاص يې چې منع کوي نو ځکه قصاص بهترينه لاره ده چې قاتل له قتل نه منع کړي .[1]

او بل قصاص داسې شى دى چې قاتل تر قتل وړاندې له قتل نه منع کولى شي چې هغه صرف ددې تصور وکوي چې دى به وژل کيږي نو دى بيا قتل نه کوي او هغه کسان چې قاتل ته په ښه تربيه ورکولو قائل دي د هغوى تجربه ناکامه ځکه ده چې يو ځل قتل وشي نو بيا ستا د ښې تربيې څه فايده او که ته وايې چې بيا به قتل نه کوي نو اکثر خلک داسې وي چې قتل کول خوند نه ورکوي او نه يې دا کسب وي چې هروخت يې کوي بلکه يو کس ته يې غصه راغلې وي صرف هغه قتل کړي بيا که ته ده ته هرڅومره نصيحتونه وکوې نو ده ته هېڅ فايده نه کوي ځکه هغه ده چې قتل کول غوښتل هغه قتل شو نو ځکه قصاص په کار دى .

او هغه کسان چې قاتل ته اوږده بنديخانه غواړي نو مخکې مونږ وويل چې د قصاص يو حکمت تر قتل وړاندې دى هغه دا چې قاتل د خپل قصاص په اړه فکر وکوي نو دى به قتل نه کوي او يو حکمت يې تر قتل وروسته دى چې د مقتول د وارثانو

[1] تفسير روائع البيان

وربانديږ غصه سړه شي د هغوی سره ظلم شوی دی ددي يو کس قتل د هغه ټولو وارثانو سره يو ډول همدردي ده او په سخته بنديخانه باندې هم د هغوی غصه نه کيني .

## دوهم اعتراض

هغه کسان چې ځان ته بشر دوستان وايي او د خپلو څه مقاصدو لپاره منډې ترړې کوي او دېته بشر دوستي وايي هغوی وايي چې د يو کس قتل کول د يو بنياد ړنګول دي  او د بل انسان وژل د بل بنياد ويستل دي نو قاتل چې يو بنياد وويستلو مونږ ته نه دي په کار چې بل بنياد (د قاتل) مونږ پسې وران کړو بلکه مونږ يې بندي کړو او نوره سزا ورته ورکړو .

ځواب

علماوو لدي اعتراض نه ځواب کړی دی که چېرته مونږ د يو قتل نه وروسته يو مجرم معاف کړو نو ده خو يو بنياد ړنګ کړو اوس به دی زړور شي او ډېر وخت به نه وي تېر چې بيا به بل داسې بنياد هم ړنګ کړي (بل قتل به هم وکوي) او همداسې بنيادونه به وي چې ړنګوي به يې او لا نور به پسې زړور کيږي خو ښه داده چې دده بنياد ور ړنګ شي او ددې فساد بيخ وويستل شي او لکه تاسې چې وايات د انساني بنيادونو ساتنه وکوله شي .

## دريم اعتراض

خلکو ته ورکړی ژوند خو خالق ورکړی خلکو خو نه دی ورکړی داسې څنګه کېدای شي چې کله يو څوک بل څوک قتل کړي نور خلک د را ټول شي او قاتل د مړکړي او له ده نه د ژوند واخلي؟

ځواب

مونږ دا منو چې قاتل ته ژوند خلکو نه دی ورکړی چې دوی بې‌رته ددې حق ولري چې تر‌ېنه محروم یې کړي دا ژوند خالق ورکړی دی لکن دی چې کله بل څوک ووژني نو الله کوم چې خالق دی کوم چې ده ته هم ژوند ورکړی دی او هغه کس ته یې هم ژوند ورکړی دی چې ده ووژلو هغه خالق ذات امر کوي چې له ده څخه د ژوند واخیستل شي او ده ته د قصاص سزا ورکړل شي او مسلمانان نور څه نه کوي هماغه د خالق رب حکم په ځای کوي .

## څلورم اعتراض

ځینې غیر مسلم وایي که چېرته ښکاره شي چې دا سزا ده ته په غلطه ورکړل شوه او په فیصله کې په کوم ځای کې غفلت شوی دی نو دا سزا بې‌رته نه راګرځول کیږي نو ښه خبره داده چې ده ته سخت بند او قید ورکړل شي که په کوم ځای کې ښکاره شي چې دا په بندیخانه کې د قاتل اچول غلطي وه نو بې‌رته به ورڅخه را وویستل شي .

ځواب

د اسلامي قانون له مخې هغه وخت د قصاص حد جاري کیږي چې کله هلته هېڅ شک پاتې نشي او چې ډېره وړه شبه وي هم اسلام چا ته اجازه نه ورکوي چې قصاص او داسې هر یو بل حد قائم کړي بلکه اول به په صحیح توګه باندې ګواهان ګواهي ورکوي او له هرې خوا څخه به شکونه لرې کول کیږي او په اسلام کې قاعده ده چې حدونه په شبهاتو باندې ساقطیږي نو ټول شبهات به له مینځه وړل کیږي بیا به د قصاص حد قائمیږي او بیا په هغه کې د هېڅ ډول خطا او شبهې احتمال نه پاتې کیږي .

# پنځم اعتراض

په کوم ځای کې چې قصاص حد قائميږي په هغه بنديخانه کې ليدل شوي دي چې ټول پاتې بنديان په يو ډول ذهني بيماري اخته کيږي يوازې هغوی نه هلته وظيفه لرونکي خلک هم د يو څه وخت نه وروسته په بده ذهني بيماري اخته کيږي دا يو کس ته سزا ورکول د ډيرو کسانو د ناروغ کېدو سبب کيږي آيادا مناسبه ده؟

ځواب

انسان جوړ همداسې دی چې هغوی داسې نا اشنا شيان ويني نو په ذهن يې تاثير راځي خو ددې تاثير له امله مونږ شرعي حدونه نشو پرېښودلی انسانان خو داسې هم شته چې يو کس ته سخته حادثه پېښه شي د هغه د لاس يا پښې د پرې کولو ضرورت وي چې ځينې خلک هغه ويني چې پښه او لاس يې ترې پرې کول کيږي نو د هغه په زړه بد اثر کيږي او دماغي بيماري ورته پيدا کيږي نو مونږ خو د دوی د بيماري او تاثر له امله داسې نشو کولی چې د هغه بيمار علاج او عمليات ونه کوو او بل دا چې په کوم ځای کې قصاص عملي شي هلته به هېڅ څوک هم پداسې بيماري نه آخته کيږي او دا چې په زړونو باندې څومره تاثير کوي همدغه تاثير د قصاص حکمت دی چې د خلکو په زړونو تاثير وشي او بيا څوک د قتل اراده هم ونه کوي.

له بله پلوه دا پورتني څومره اعتراضونه چې دي ټول پدې بناء دي چې په قاتل باندې بايد رحم وشي او دوی دا فکر نه کوي چې هغه کس چې خپلوان او عزيز يې وژل شوی دی په هغه باندې زيات ترحم کول او مهرباني کول په کار دي او د هغوی سره همدردي کول په کار دي او ترڅو چې

هغوی معاف کړی نه وي د قاتل په ژوندي پرېښودلو کې له هغوی سره زیاتی کول دي .

## شپږم اعتراض

هغه کسان چې په زمکه باندې یې اسلامي احکام عملي نه دي خوښ هغوی وایي مونږ په کوم ځای کې چې قصاص عملي لیدلی هلته مو د قتلونو کمېدل نه دي لیدلي او په کومو ملکونو کې چې قصاص نشته هم تر هغه ځای نه پکې زیات قتلونه نه کیږي لکه په کوم ځای کې چې قصاص عملي دی نو په ښکاره کې داسې ښکاره کیږي چې د قصاص حکم څه فایده نه ده کړې .

### ځواب

اول خو په زمکه کې داسې اسلامي ملکونه اوس یا نشته او یا خو ډېر کم دي چې هغوی په سمه توګه د اسلامي قانون مطابق قصاص عملي کړی وي او چا چې عملي کړی دی فایده ئې شته اګر که تاسې ته نه ښکاره کیږي ځکه په هغه ځای کې چې اوس هم قتلونه کیږي نو که چېرته قصاص نه وای نو د موجودې احصائیې څو چنده قتلونه به نور زیات شوي وو او خلک تر خلکو پورې فرق کوي او ساحه تر ساحې پورې فرق کوي په هغه ځایونو کې چې تاته ښکاریږي چې د قصاص د عملي کېدلو نه بغیر هم قتلونه لږ دي نو که په هغه ساحو کې او په هغه خلکو باندې قصاص عملي شي نو دا شته قتلونه به هم بالکل ورک شي او هغه کسان چې مسلمان دي هغوی پدې پوه دي چې الله قصاص ته ژوند ویلی دی پدې کې هېڅ شک نشته چې دا رښتیا دي او په رښتیا سره قصاص یو ډول ژوند دی او الله هغه ذات دی چې ټول انسانان یې پیدا کړي دي او هغه په سمه توګه پوهیږي چې څنګه یو انسان له کوم عمل نه منع کړي هغه پدې باندې عالم دی

چې که انسان ته د قتل په بدل کې قتل مقرر کړل شي نو پدې سره د قتلونو مخه نیول کیږي او تر هغه نه زیات د انسانانو په طبیعت هېڅوک ښه نه پوهیږي .

او ځکه خو ډېر داسې ملکونه دي چې یو ځل یې د قصاص حکم ختم کړو او اعلان یې وکولو چې دوی به نوره په قانون کې د اعدام سزا نه عملي کوي لکن چې ویې لیدل چې د مجرمینو وېره ختمه شوه نو جرمونه مخ په زیاتېدو شول او یو هلاکونکي شمار ته ورسېدل نو یې بېرته اعلان کړو چې د نن نه وروسته به قاتل په اعدام کیږي ځکه دوی بله هېڅ لاره د قتل د مخنیوي لپاره تر قصاص نه کامیابه پیدا نه کړه بلکه هېڅ سزا تر شریعت ښه سزا نشته هغه کسانو چې اخبار تعقیب کوي او خبرونه په منظم ډول سره ګوري او څاري هغوی ته دا معلومه ده چې تر ټولو نه زیات او خطرناک جرمونه په هغه معاشرو کې دي چې هلته اسلامي شریعت عملي نه دی د یو عالم او کار پوه عبد القادر العودة په حواله د امریکا د جرمونو د یوې سرکارې سروې نتیجه تاسې ته مخې ته اېږدم چېرته چې اسلامي شریعت عملي نه دی  هغه لیکي :

A summary statistics that talk about the spread of crimes in U.S., based on U.S. Government references, is presented below :

یوه خلاصه معلومات چې د خوریو شویو جرمونو په اړه خبره کوي چې په امریکا کې کیږي او دا د امریکا د حکومت د مرجع په حواله باندې په لاندې توګه وړاندې کیږي .

One murder every twenty four minutes

یو قتل په هرو ٢٤ دقیقو کې

One forcible rape every seven minutes

یو د زنا بالجبر واقعه په هرو ۷ دقیقو کې

One rubbery every sixty eight seconds

یوه شوکه په هرو ٦٨ ثانیو کې

One violent crime every twenty seven seconds

یوه د بد معاشي جرم په هرو ٢٧ ثانیو کې

One burglary every ten seconds

یوه د غلا چاپه په هرو لسو دقیقو کې

One larceny/ theft every five seconds

یوه غلا په هرو پنځو ثانیو کې

One motor vehicle theft every twenty nine seconds

یوه د حملیې وسیلې غلا په هرو ٢٩ ثانیو کې

One property crime every three seconds

یو د جائداد په اړه جرم په هرو دریو ثانیو کې .[1]

## اوم اعتراض

هغه کسان چې د انسان وضعي قوانین یې خوښ دي هغوی چې د قصاص طرفداري نه کوي هغوی دا هم وایي چې د یو انسان د قصاص کولو سره او د خلکو په وړاندې له وژلو سره په عوامو کې د انسانیت قدر کمیږي او هغوی په ورو ورو بیا

[1] Federal Bureau of Investigation

بیا داسې لیدلو سره د انسان د ژوند له مینځه له تللو سره عادي کیږي او دا بیا ورته سپک شکاره کیږي او دا ښه خبره نه ده بلکه مونږ باید داسې کار وکوو چې له هغې سره د خلکو په زړونو کې د انسانیت قدر زیات شي .

ځواب :

علماوو یې ځواب کړی چې دا شک غلط دی بلکه حقیقت دادی چې عام خلک ویني چې د یو انسان په بدل کې بل انسان وژل کیږي لدې سره د هغوی په زړونو کې د انسانیت قدر زیاتیږي او د انسانیت له شروع نه تر اوسه پورې ټول خلک پدې متفق دي چې قتل کول یو بد عمل دی او کوم انسان چې قتل وکوي هغه پدې خپل بد عمل سره له انسانیت نه وزي نو بیا دده قتل کول هېڅوک بد نه ګڼي او د قصاص په وخت کې هم خلک د هغه مقتول سره همدردي ښکاره کوي او په قاتل یې زړه نه خوګیږي او هغه څوک چې په قاتل باندې رحم کوي هغوی انصاف نه لري هغوی د مقتول په وارثانو باندې ظلم کوي او په انسانیت کې هغه کس چې ده وژلی هغه له ده څخه ډېر غوره دی او ددې سره سره بیا ده د هغه کس ژوند تلف کړو نو اوس ددې قاتل وژل هېڅ نوې او عجیبه خبره نه ده د **الجزاء من جنس العمل** (یعني سزا لکه عمل داسې) د قاعدې له مخې قاتل ته همدا سزا په کار ده .

او له بله پلوه شریعت لکه علم الطب داسې دی چې کله په یو اندام کې داسې بیماري وي چې علاج یې ممکن نه وي نو مخکې ددې چې نور بدن ته سرایت وکوي او دا بیماري د انسان د مرګ سبب شي نو علم الطب د هغه اندام په پرې کولو باندې حکم کوي ترڅو یو اندام ضائع شي خو انسان له مرګ نه وساتل شي نو ځکه شریعت امر کوي چې د قاتل په وژلو سره ځان او معاشره ددې

بد اندام او انسان څخه خلاص کړي او ټوله معاشره د سکون ، ارام او خوندي پاتې کېدلو احساس وکوي .

## د قصاص مسئلې

لکه مخکې چې تېر شول کله چې په شرعي طريقه په چا باندې قتل ثابت شي نو په ده باندې به قصاص عملي کيږي او دی به وژل کيږي پدې اړه څه جزياتو ته ستاسې فام را ګرځوم .

که په اسلامي ملک کې په اجازه سره کافر اوسيږي او مسلمان قتل کړي په هغه باندې به هم قصاص عملي کيږي او لدې اسلامي حکم نه هغه مستثنی نه دی .[1]

همدارنګه که ذمي کافر وو او مسلمان يې مړ کړو او يا يو ذمي بل ذمي قتل کړو نو هم قصاص به پرې عملي کيږي .[2]

په قصاص کې که د کوم لوري اندامونه کم وو پروا يې نشته د مثال په ډول که چا ړوند سړی قتل کړو بيا به هم دا جوړ ورباندې قصاص کيږي همدارنګه که شل وو يا ګوډ وو او يا بله سخته بيماري ورباندې وه د قصاص مخه نه نيسي همدارنګه که يو ړوند سړی را پورته شو جوړ يې قتل کړو نو بيا به هم صرف قصاص ورباندې عملي کيږي اضافي څه سزا ورباندې نشته .[3]

که ماشوم (چې بالغ شوی نه وي) څوک قتل کړي نو قصاص ورباندې نشته دده په حق کې قصدي وژل او خطايي دواړه يو شان دي په دواړو صورتونو کې

[1] فتاوی قاضي خان
[2] عالمګيري
[3] الکافي بحواله عالمګيري

وربـانـدې دیـت لازمـیـږي خـو کـه قـصداً یـې قـتـل کـړی وو دیـت بـه دده لـه مـال نـه ورکـول کـیـږي او د امـام ابـي حـنـیـفـه د مـسلـک لـه مـخې پـه ده بـانـدې کـفـاره هـم نـشـتـه او پـه قـتـل عـمـد کـې لـه مـیـراث څـخـه هـم نـه مـحـروم کـیـږي او پـه لـیـونـي کـې هـم هـمـدا مـسـئـلـه ده [1].

کـه جـوړ سـړي یـو لـیـونـی قـتـل کـړو نـو جـوړ بـه وربـانـدې قـصاص کـیـږي او کـه لـیـونـي سـړي جـوړ قـتـل کـړو نـو لـیـونـی بـه نـه قـصاص کـیـږي [2].

کـه جـوړ سـړی وو قـتـل یـې وکـولـو قـاضي وربـانـدې د قـصاص فـیـصلـه وکـولـه مـخـکې لـدې چـې قـصاص وربـانـدې عـمـلـي کـړل شي هـغـه لـیـونـی شـو او دا پـه صحـیـح تـوګـه ښـکـاره شـوه چـې هـغـه لـیـونـی شـوی دی نـو بـیـا اسـتـحسانـاً قـصاص وربـانـدې نـشـتـه او دیـت بـه ورڅـخـه اخـیـسـتـل کـیـږي [3].

او کـه دا قـاتـل پـداسې وخـت کـې لـیـونـی شـو چـې د مـقـتـول وارثـانـو تـه د قـصاص لـپـاره سـپـارل شـوی وو نـو بـیـا بـه ورڅـخـه قـصاص اخـیـسـتـل کـیـږي [4].

کـه چـا قـتـل وکـولـو او بـیـا مـخـکې لـدې چـې د قـصاص فـیـصلـه پـرې وشي هـغـه پـخـپـلـه مـړ شـو او یـا لـه بـلـې خـوا چـا ووژلـو نـو قـصاص سـاقـط شـو [5].

کـه چـا خـپـل مـور یـا پـلار یـا پـه نـیـکـونـو کـې څـوک مـړه کـړل کـه هـرڅـو لـوړ وي کـه د مـور لـه لـوري وي

---

[1] **الـمحیط**
[2] **فـتـاوی قـاضي خـان**
[3] **الـخلاصة**
[4] **عـالـمګیـري**
[5] **هـدایـة**

او که د پلار له لوري وي نو دی به ور باندې قصاص کیږي.[1]

که پلار یا مور خپل زوی ووژلو قصاص ورباندې نشته نیکه هم که هرڅو لوړ وي لکه پلار داسی دی نو که لمسی یې ووژلو هم قصاص ورباندې نشته.[2]

که پلار خپل زوی ووژلو دیت به ورڅخه اخیستل کیږي په د ریو کلونو کې او که په خطاء سره کوم پلار خپل زوی ووژلو نو دیت یې په عاقلة او کورنۍ باندې دی او د امام ابي حنیفه د مسلک له مخې په قصدي وژنه (قتل العمد) کې ورباندې کفاره نشته او په قتل خطاء کې ورباندې شته .[3]

که چا څوک په اور کې سوزولي وو او یا یې په ابو کې غرق کړي وو یا یې کوم اندام ورڅخه پرې کړی وو او بیا یې پریښی وو ترڅو چې هغه مړ شوی وو پدې ټولو صورتونو کې به سر ترینه په توره ووهي او دا قاتل به اوس نه سوزوي او نه به یې پدې نورو ډولونو سره وژني .[4]

که یو کس ډیر کسان ووژل بیا د هغه ټولو وارثان راغلل نو دی صرف وژلی شي او دا ددې ټولو قصاص دی ددېنه سوا بل څه حق نه لري چې لده سره یې وکوي او که یو حاضر شو هغه دعوه پرې وکوله هغه د خپل وژل شوي خپلوان په بدل کې قصاص کړو نو چې دی ووژل شو د نورو حق ورڅخه ساقط شو .[5]

---

[1] فتاوی قاضي خان
[2] الکافي
[3] محیط السرخسي
[4] محیط السرخسي
[5] الهدایة

او که ډېر کسان را ټول شول يو کس يې ووژلو نو د دې يو کس په بدل کې به دا ټول کسان قصاص کيږي .[1]

که چا څوک ووهلو او هغه له همدې وهلو نه د بستري بېمار شو تردې چې په حق ورسېدو نو وهونکی به قاتل ګڼل کيږي او قصاص کيږي به .[2]

## قصاص اخيستل د چا حق دی؟

کله چې څوک ووژل شي له قاتل نه قصاص اخيستل د هغه د نيږدې خپلوانو حق دی او بيا د ټولو هغه کسانو حق دی چې له مقتول نه ميراث وړي نو پدې کې خاوند او ښځه پلار او نور ټول خپلوان داخل شول .[3]

په اصل کې قصاص اخيستل پخپله د هغه کس حق دی چې وژل شوی دی لکن ځرنګه چې هغه په حق ورسېدو نو د قصاص حق هم ورڅخه په ميراث کې ټولو هغه خپلوانو ته پاتې شو چې له ده څخه ميراث وړي .[4]

که د چا خپلوان ووژل شو او بغير د قاضي له فيصلې نه هغه ور پاڅېدو قاتل يې ووژلو نو صحيح ده په ده باندې هېڅ جرم نشته لکن په توره به يې وژني او که ده په هغه باندې ظلم شروع کړو نو خلک به يې ورڅخه منع کړي لکن بيا هم که چا منع نه کړو او ده هغه په ډېر ظلم سره مړ کړو نو اوس هم وربانديې هېڅ تاوان نشته

---

1 **الكافي**
2 **الخلاصة**
3 فتاوی قاضي خان
4 **الهداية**

ځکه بالآخره یې هغه مړ کړو او د هغه مړ کول دده حق وو او ده خپل حق ځان ته حاصل کړو .[1]

که یو څوک ووژل شو او یو ترینه ماشوم وارث پاتې شو او یو لوی وو نو لوی کولی شي له هغه قاتل نه قصاص واخلي او که یو مشر وو او یو ماشوم وو لکن مشر لیونی وو نو بیا به اسلامي امیر ددوی په ځای له هغه قاتل نه قصاص واخلي د امام ابي حنیفه د مذهب له مخې او همدارنګه یا به د دوی له لوري قاضي له هغه قاتل نه قصاص واخلي .[2]

همدارنګه که وارثان ټول ماشومان ورڅخه پاتې شول نو پدې کې دوه قولونه دي د ځینې علماوو رایه داده چې قاضي او یا امیر به د دوی له لوري قصاص واخلي او د یو قول له مخې به صبر وکول شي ترڅو په دوی کې یو او یا ځینې بالغان شي نو بیا به دوی خپله ددې اهل شي چې خپل قصاص واخلي .[3]

که دوو کسانو یو کس ووژلو په هغه دوو کسانو کې یو کس ولي معاف کړو نو کولی شي د بل نه قصاص واخلي همدارنګه یو کس دوه کسان ووژل د یو وارثانو ده ته بښنه وکوله نو د بل وارثان کولی شي له ده نه خپل قصاص واخلي .[4]

## تر مرګ نه ښکته قصاص

دا پورته مسئلې د هغه صورت وې چې یو چا څوک وژلي وو کله داسې هم وي چې څوک د چا سترګه ور ړنده کړي او یا یې لاس ور پرې کړي او یا یې بل

---

1 **المحیط**
2 **الاختیار شرح المختار**
3 **الاختیار شرح المختار**
4 **فتاوی قاضي خان**

اندام ور ضائع کړي نو پدې ډول قصاص کې مساواة ضروري دی نو که چا د چا جوړ لاس ور پرې کړو نو دده به هم جوړ لاس پرې کول کیږي که چا د چا ښی لاس ور پرې کړو نو دده به هم ښی او که چپ وو نو دده به هم چپ لاس پرې کول کیږي .

د اطرافو او اندامونو قصاص د مسلمان او کافر (ذمي) او د دوو ښځو په مینځ کې که مسلمانه وي که کافره وي او که کافرې وي په اسلامي ملک کې د ذمي په توګه هوسیږي په ټولو صورتونو کې شته .[1]

د وېښتانو په ویستلو کې قصاص نشته که هرڅنګه وي .[2]

همدارنګه که د بدن د کومې برخې پوستکی پرې کړل شل ، یا له کوم ځای نه غوښه پرې کړل شي لکه له غامبوري نه ، له ګېډې نه ، له شا نه نو قصاص پکې نشته همدارنګه که د زنې پوستکی پر کړل شي نو قصاص پکې نشته .[3]

هډوکی چې بې بنده مات شي په هغه کې قصاص نشته بغیر د غاښ نه غاښ چې مات شي غاښ به یې ور ماتول کیږي او که په بدن کې د کومې بلې برخې هډوکی په بند کې مات شو قصاص پکې شته او که بې بنده مات شو قصاص پکې نشته ځکه د بل چا هډوکی قصداً بیا په هغه توګه نه ماتیږي لکه څنګه چې د اول په اتفاقي ډول سره مات شوی وي .[4]

که د یو چا سترګه بل کس ووهله او د هغه نظر یې ور ختم کړو نو دده د سترګې نظر به ور

---

[1] الجوهرة النيرة
[2] الذخيرة
[3] المحيط
[4] المبسوط

ختموي او اسانه طريقه يې داده چې د هغه په مخ او په هغه سترګه چې ړندول يې مطلب نه وي لنده پخته واچوي ترڅو ونه سوزي او کومه سترګه چې ړندول يې غواړي هغه به لوڅه پريږدي اوشيشه به سمه ګرمه کړي مخ ته به يې ور نږدې کړي کومه سترګه چې لوڅه پرېښودل شوېده د هغې نظر به ختم شي .[1]

او په ساده طريقې سره د سترګې د امتحان لپاره چې آيا نظر يې شته که تللی دی دې کس ته به ووايي چې د لمر سترګې ته د سترګې خلاص کړې او ورته د وګوري پداسې وخت کې چې لمر ښه تيز وي نو که له سترګې نه اوښکې راغلې نو نظر يې شته او که اوښکه يې ونه کوله نو نظر يې تللی دی .[2]

امام کرخي فرمايي که سترګه ووهل شوه هغه صرف و پړسيده او نظر يې باقي وو نو بيا قصاص پکې نشته .[3]

که د چا سترګه يې ووهله او هغه ړنده شوه په هر حالت کې قصاص پرې شته که په څه سلاح سره يې وهلې وه که په سوک او څپېړې سره وه او که په ګوته سره وه فرق نه کوي .[4]

که چا د بل چاد مثال په ډول ښۍ سترګه ور ړنده کړه نو دده به هم ښۍ سترګه ړندول کيږي او که په اتفاقي ډول سره د جاني چپه له مخکې نه ړنده وه بيا به هم دده ښۍ سترګه ړنده کړل شي

---

1 الکافي
2 الظهيرية
3 المحيط
4 الظهيرية

او همداسې په دواړو سترګو به ړوند پرېښودل شي [1].

که هرڅنګه حالت وو د ښۍ سترګې قصاص به له چپې او له چپې به له ښۍ سترګې نه اخیستل کیږي همدارنګه که د جنایت کونکي سترګې لویې لویې وې نو په قصاص کې یو شان دي پروا نه کوي [2].

که د چا غوږ یې قصداً له بیخ نه پرې کړو نو قصاص پرې شته د جنایت کونکي غوږ به پرې کول کیږي امام کرخي به ویل که یې لږ هم پرې کړو نو که ممکنه وه چې په هماغه اندازه د جاني غوږ هم پرې کړل شي نو قصاص د عملي کړل شي او امام ابي یوسف به فرمایل په غوږ کې هم بندونه وي که له بند نه پرې کړل شوی وو نو قصاص د ورڅخه واخیستل شي او دا چې غوږ په بند کې پرې کړل شوی دی او کنه نو ماهرینو ته د رجوع وکوله شي چې هغوی پکې فیصله وکوي که هغوی وویل چې له بند نه پرې کړل شوی دی نو له هماغه بند څخه د د جنایت کوونکي غوږ هم پرې کړل شي او که یې وویل چې له بند څخه نه دی پرې کړل شوی نو بیا دې په باریکه او صحیح توګه اندازه واخلي او په هغه اندازه سره د د جنایت کوونکي غوږ پرې کړل شي [3].

همدارنګه که د چا پوزه یې ور پرې کړه د جنایت کوونکي پوزه به پرې کول کیږي او که د جنایت کوونکي پوزه وړوکې او د مجني علیه لویه وه نو مجني علیه (د چا پوزه چې پرې کول شوېده) اختیار لري که یې د همدې وړوکې پوزې په پرې

---

[1] الظهيرية
[2] عالمګيري
[3] الظهيرية

کولو اکتفاء کوي او خوښه يې وي تاوان د ورڅخه واخلي .[1]

د ژبې په قطع کې قصاص نشته که يې لږ ورڅخه پرې کړې وي او که يې ټوله ورڅخه پرې کړې وي .[2]

لکه مخکې چې تېر شول د هډوکي په ماتېدلو کې قصاص نشته بغير د غاښ نه او که غاښ يې ور مات کړو نو قصاص وربانديې شته غاښ به يې ماتيږي .[3]

په غاښ کې به د جنايت کوونکي غاښ ماتيږي او په غاښ کې د موجوده غاښ او يا ماتې شوې برخې اندازې ته نه کتل کيږي بلکه دېته کتل کيږي چې د غاښ څومه برخه ماته شوېده نيم مات شوی که دريمه برخه او که څومره .[4]

د ښي طرف په غاښ کې د چپ طرف او د چپ طرف د غاښ په بدل کې د ښي طرف غاښ د پورتني غاښ په بدل کې به ښکتنی غاښ او د ښکتني غاښ په بدل کې به پورتنی غاښ نه ماتول کيږي بلکه چې کوم مات وي هغه به ماتول کيږي .[5]

که نيم غاښ يې ور مات کړو يا يې د غاښ دريمه او څلورمه برخه ور ماته کړه نو په هماغه اندازه به يې ور مات کړي که ممکنه وه چې د انصاف په ډول په هماغه اندازه مات کړل شي او که انصاف پکې ممکن نه وو نو بيا به تاوان ورڅخه واخلي .[6]

---

1 المحيط
2 الظهيرية
3 الهداية
4 الوجيز للکردري
5 الجوهرة النيرة
6 الظهيرية

که دا چا غاښ یې ووهلو هغه له بېخ نه ووتلو نو په قصاص کې به د جنایت کوونکي غاښ نه ویستل کیږي بلکه تر بیخه پورې به پرې کول کیږي چې بیا هغه چې په غوښه کې دی پخپله وغورځیږي .[1]

که د چا غاښ یې ور مات کړو پاتې غاښ تور شو ، شین شو او یا سور شو او یا بل ډول عیب جن شو نو پدې صورت کې قصاص نشته دیت به ورڅخه واخلي (د دیت تفصیل را روان دی) .[2]

که پدې صورت کې هغه کس چې غاښ یې مات کړل شوی وویل چې زه یې غاښ ور ماتوم او دا زما غاښ چې عیب جن شوی دا زه ورته معاف کوم پدې صورت کی دی دا حق نه لري او اوس د هغه غاښ نشي ور ماتولی .[3]

نو ددې امله چې کله د چا غاښ مات کړل شي هغه ته به تر یوکال پورې صبر کول کیږي چې په غاښ کې یې څه بله بیماري را ښکاره نه شوه نو یو ماهر کس به ورته راوستلي او هغه ته به اندازه و ښیي چې په هغه اندازه یې غاښ پرې کړي .[4]

که چا د چا غاښ ور وویست او په قصاص کې د جنایت کوونکي غاښ هم وویستل شو خو د جنایت کوونکي غاښ دوهم ځلي را شین شو نو اوس قصاص پوره شوی دی هغه حق نه لري چې دا را شین شوی غاښ هم ترې وباسي .[5]

همدارنګه که چا د چا لاس قصداً له بند څخه پرې کړو نو دده لاس به له هماغه بند څخه پرې کول

---

1 الفتاوی الصغری
2 الخلاصة
3 فتاوی قاضي خان
4 المحیط
5 المحیط

کیږي او لکه مخکې چې تېر شول د اندامونو لوی والي ته کوم اعتبار نشته که د جنایت کوونکي لاسونه تر مجني علیه څخه لوی هم وو نو پروا یې نشته لکن د قصاص اخستلو ته به د زخم تر جوړېدلو پورې صبر کوي کله چې دده زخم جوړ شي بیا به د جنایت کوونکي لاس پرې کول کیږي .[1]

همدارنګه ګوته که له بند څخه ماته شوې وه قصاص پکې شته او که له بند څخه نه وه ماتې شوې بیا پکې قصاص نشته .[2]

همدارنګه که د چا پښه یې له بند څخه قصداً ماته کړه قصاص پکې شته او که له بند څخه نه وه ماته شوې بیا پکې قصاص نشته همدارنګه لکه د لاس په ګوتو کې داسې حکم د پښو په ګوتو کې هم دی که له بند څخه ماتې شوې وي بیا پکې قصاص شته او که له بند څخه نه وې ماتې شوې بیا پکې قصاص نشته .[3]

او په اندامونو کې قصاص یو د بل په ځای نه دریږي نو که د چا پښه یې ماته کړه د هغې په بدل کې لاس ماتول نشته همدارنګه که د پښې ګوته یې ور ماته کړه نو په بدل کې یې د لاس د ګوتې ماتول نشته .[4]

همدارنګه په پنځو ګوتو کې چې کومه یوه ماته کړل شوې وه د جنایت کوونکي نه به د قصاص په وخت کې هماغه ماتول کیږي او هېڅ تغیر به پکې نه راځي نه د یو لاس په ګوتو کې او نه د ښي لاس او چپ لاس په ګوتو کې یعني که د مجني علیه (هغه چې جنایت ورباندې شوی دی) په ګوتو کې یې سبابة ماته کړې وه نو د جنایت کوونکي به هم

---

1 الجوهرة النيرة
2 خزانة المفتين
3 المحيط
4 مبسوط السرخسي

سبابه ماتول کیږي که د ښي لاس وه نو د ښي لاس او که د چپ لاس وه نو د چپ لاس .[1]

او که د چا په ګوتوکې یوه ګوته زیاته وه هغه یې ورماته کړه نو قصاص پکې نشته او که د جنایت کوونکي په لاس کې هغه شان زیاته ګوته وه بیا هم پکې قصاص نشته .[2]

که د چا لاس یې ور مات کړو او د هغه لاس جوړ وو او دجنایت کوونکي لاس معیوب وو نو اوس د هغه اختیار دی که همدغه معیوب لاس یې ور ماتوي او نور د هیڅ شي حق نه لري او که ورڅخه تاوان اخلي (د تاوان خبرې به ان شاء الله د دیت په برخه کې راشي) .[3]

که د چا یې کوم اندام ور ضائع کړو د مثال په توګه لاس یا پښه یې ور پرې کړل او د جنایت کوونکي هغه اندام نه وو یعني د چا یې ښی لاس ور مات کړو او د جنایت کوونکي لاس له مخکې څخه نه وو نو مجني علیه (هغه چې جنایت وربانديې شوی دی) دا حق نه لري چې اوس د هغه چپ لاس ور مات کړي بلکه مجبور دی تاوان به ترې ا خلي .[4] (د تاوان خبره په دیت کې راځي ان شا ء الله ) .

## دیت

دیت هغه مال ته ویل کیږي چې د قاتل او یا د هغه د کورنۍ له خوا د مقتول وارثانو ته او یا د جنایت کوونکي له خوا مجني علیه (هغه چې جنایت وربانديې شوی وي) ته ورکول کیږي .

---

1 الذخیرة
2 الجوهرة النیرة
3 الکافي
4 عالمګیري

د دیت په اړه په قرآن کریم کې الله فرمايي :
وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ .[1]

ترجمة :او هرڅوک چې مړ کړي کوم مؤمن په خطا سره نو (شته په قاتل) آزادول د غاړې (د مريي) مؤمن او (بل) ديت دى سپارل شوى اهل (وارثانو) د مقتول ته .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ د ديت په اړه فرمايل : من قتل له قتيل فهو بخير النظرين: إما أن يفدى، وإما أن يقتل .

ترجمة : هغه چې څوک يې ووژل شي نو د هغه اختيار دى يا به هغه ته فديه ورکول شي او يا به هغه قاتل قتل کړي .

## ديت به څوک ورکوي؟

دا جنايت چې د مجني عليه په حق کې وشي په دوه ډوله دى يو قصدي دى نو د هغې په بدل کې لکه لړ مخکې چې تېر شو قصاص دى خو که هغوى قصاص ورته پرېږدي هغوى کولى شي ديت هم واخلي نو پدې صورت کې صرف جنايت کونکى او يا قاتلددې ذمه وار دى چې هغه ديت ورکړي او په بل هېچا دده بوج نه اچول کيږي لکه الله چې فرمايي : وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى .[2]

ترجمة : هېڅ ګناهکار نفس د بل نفس د ګناه لپاره ذمه وار نه دى .

---

[1] سورة النساء آية ٩٢
[2] سورة الانعام آية ١٦٤

او که چېرته جنایت په خطا او یا شبه عمد سره چې تفصیل یې مخکې تېر شوی دی وو نو بیا به دیت د جنایت کوونکي په عاقله کورنۍ او خپلوانو او قوم باندې اچول کیږي ځکه پدې صورت کې جنایت کونکی معذور دی ځکه ده جنایت کول نه غوښتل او هغه واقع شو نو ځکه شریعت په ده باندې دومره بوج نه اچوي چې اوس به دیت دی پخپله ورکوي او د قتل عمد په صورت کې خو د جنایت کوونکي وژل په کار وو نو چې د مجني علیه له لوري دا معاف کړل شي نو د خپل نفس په بدل کې خو باید دی په خوشحالي سره دیت اداء کړي .

## دیت څه وخت ورکول کیږي

کله چې قصدا وژنه (قتل عمد) وشي خو د مقتول کورنۍ له هغه نه قصاص اخیستل ونه غواړي او هغوی قصداً له ده څخه دیت وغواړي نو پدې صورت کې قصاص نه بلکه دیت به ورڅخه اخیستل کیږي .

خو لکه وروسته به هم راشي دا دیت به جنایت کونکی پخپله ورکوي او هېڅوک به له ده سره پدې نه شریکول کیږي ځکه دا دده خپل د خپل جُرم سزا ده او باید هم ده ته ورکړل شي او د همده لپاره باید یو ډول عبرت او پند پاتې شي .

همدارنګه که یې کوم اندام ور ضائع کړو او مجني علیه (په چا باندې چې جنایت شوی وي) نه غواړي له ده څخه بدل واخلي نو هغه ته به دیت ورکول کیږ ي .

د شبه العمد (هغه وژنه چې قصدي نه وي لکه قصدي داسې وي تفصیل یې تېر شوی دی) په صورت کې هم قصاص نشته او قاتل به د مقتول وارثانو ته دیت ورکوي او دا دیت هم پوره دیت دی لکن یوازی دی نه بلکه له ده سره به یې دده عاقلة

هم ورکوي عاقلة څه ته وايي ؟ علماء وايي **هم عصبته وهم القرابة من قبل الأب الذين يعطون دية من قتله خطأ .** [1]
(يعني دا يې هغه کورنۍ ده او خپلوان يې دي د پلار له لوري هغه چې دده له خوا د قتل خطاء ديت ورکوي.

همدارنګه د قتل خطاء په صورت کې په جنايت کوونکي باندې قصاص نشته خو د مجني عليه کورنۍ ته به ديت ورکوي .

## د ديت احکام

ديت په اصطلاحي استعمال کې هغه مال ته ويل کيږي چې د نفس په بدل کې ورکول کيږي او ارش (تاوان) هغه مال ته ويل کيږي چې په هغه جنايت کې ورکول کيږي چې تر نفس څخه کم وي لکه د غاښ په ماتولو ، د سترګې په ړندولو او يا داسې نورو کې . [2]

ديت په قتل خطاء کې او هغه چې د قتل خطاء احکام اخلي او په شبه العمد کې د ليوني او ماشوم په قتل کې واجبيږي او هغه ديت چې ددې جرمونو په بدل کې وي دا ټول د هغه په کورنۍ باندې دی بغير د هغه صورت نه چې پلار خپل زوی قصداً قتل کړي دا ديت په عاقله نه بلکه دده په خپل مال کې دی په د ريو کلونو کې به يې ورکوي [3] .

او په هر هغه قصدي وژنه (قتل عمد) کې چې د کومې شبهې له امله قصاص ساقط شي نو هلته ديت لازميږي او هغه ديت په عاقلة نه بلکه پخپله په قاتل باندې دی همدارنګه هر هغه تاوان چې په

---

1 مختار الصحاح
2 الکافي
3 الجوهرة النيرة

قاتل باندې د صلح له امله راشي دا په قاتل باندې دي لكن اول (چې د څه شبهې له امله قصاص ساقط او مال واجب شي) په دريو كلونو كې په جنايت كوونكي باندې وركول لازم دي او هغه چې په صلح باندې لازم شي نو همدا اوس وركول واجب دي .[1]

د امام ابي حنيفه د مسلك له مخې چې ديت په قتل سره واجب شي له دريو شيانو څخه به وركول كيږي له اوښانو ، له سپينو زرو او يا له سرو زرو څخه .[2]

## د ديت اندازه

امام ابي حنيفه د قتل د ديت په اړه فرمايي كه اوښان وركوي نو سل اوښان دي ، كه سره زر وركوي نو زر دينار دي او كه سپين زر وركوي نو لس زره درهمه دي او د وركوونكي خوښه ده چې له هر يو څخه يې وركوي .[3]

امام ابو يوسف او امام محمد فرمايي كه له غوايانو څخه يې وركوي نو دوه سوه دي او كه له پسونو څخه يې وركوي نو زر څاروي مال دى .[4]

نو په جنايتونو كې چې كله ياديږي چې مكمل ديت نو معنى يې داده چې دومره ديت به وركوي لكه قتل يې چې كړى وي او نيم ديت او د ديت څلورمه په همدې معنى ده چې د مكمل قتل ديت به نيم او يا په څلورو برخو تقسيم كړي او داسې نور ..

1 الهداية
2 شرح الطحاوي
3 محيط السرخسي
4 الهداية

د سر وپښته يې که پرې وخريل او داسې څه طريقه يې ورسره وکوله چې بيا يې وېښته را شنه نه شول نو د يو کال مهلت به ورکړي که په يو کال کې يې وېښته را شنه شول نو بيا ورباندې څه نشته او که تر يو کال پورې يې وېښته را شنه نه شول نو د ښځې او سړي په حق کې يې مکمل ديت دی .[1]

همدارنګه که د چا وريځې يې پرې وويستلې او يا يې پداسې توګه پرې وخريلې چې بيا را شنې نه شوې نو مکمل ديت دی او که د يو طرف وريځې وې نو بيا نيم ديت دی .[2]

همدارنګه که يې د چا ږيره ور وخريله او هغه بيا را شنه نه شوه نو مکمل ديت دی .[3]

د ږيرې او سر او د وريځو په خريلو کې قصداً او په خطاء سره ټول يو برابر دي همدا يو حکم يې دی .[4]

که يې په همدې ډول نيم سر او يا نيمه ږيره پرې وخريله او هلته بيا وېښته را شنه نه شول نو د يو قول له مخې ورباندې نيم ديت واجب دی او د يو قول له مخې ورباندې پوره ديت دی .[5]

او که نيمه ږيره يې ورباندې وويسته خو په صحيح توګه معلوميده چې نيمه ده نو نيم ديت ورباندې لازم دی او که چېرته لږ وه نو مکمل ديت به په ټوله ږيره تقسيم کړل شي او چې

---

1 الذخيرة
2 المبسوط
3 الذخيرة
4 الكافي
5 محيط السرخسي

ځومره وپستل شوېده د هغې په اندازه دیت به تري واخیستل شي .[1]

او که وېښته بېرته هغه ډول را شنه شول لکه څنګه چې مخکې وو نو بیا وربانديږ هېڅ نشته لکن بیا به هم جنایت کوونکي ته د ادب لپاره څه تعذیر ورکوي .[2]

او که ځینې وېښته را شنه او ځینې را شنه نه شول نو هلته به د انصاف خلک فیصله وکوي چې څو فیصده وېښته نه دي را شنه شوي نو په هماغه اندازه به له مکمل دیت نه ورکوي یعني مکمل د یو انسان دیت به په ټوله ږیره باندې تقسیم کړي او د انصاف او بصیرت خلک به فیصله وکوي چې څو فیصده ږیره نه ده شنه شوې نو په هغه اندازه دیت به تري واخلي .[3]

همدارنګه که کوم انسان له بل سره بل داسې څه عمل وکولو چې له امله یې مکمله ږیره تویه شوه نو د ږیرې له امله به وربانديږ مکمل دیت واجبږي .[4]

او که د چا بریت یې وربانديږ پداسې توګه وخریل چې بیا را شنه نه شول هلته به د انصاف او بصیرت خاوندان فیصله وکوي چې په ږیره کې پوره دیت دی نو په بریتو کې ورڅخه باید ځومره واخیستل شي .[5]

او که ږیره او بریت یې دواړه وربانديږ وخریل او دواړه را شنه نه شول نو د ږیرې په بدل کې

---

[1] **الخلاصة**
[2] **المبسوط**
[3] **فتاوى قاضي خان**
[4] **المحيط**
[5] **فتاوى قاضي خان**

به ورڅخه مکمل دیت واخلي او د بریتو دیت پدې کې نه خلاصیږي .[1]

د دواړو غوږونو په پرې کولو کې مکل دیت دی او د یو غوږ په پرې کولو کې نیم دیت دی .[2]

همدارنګه که په سر یې وار ورکړو او پدې سره دده د آورېدلو قوت بالکل ختم شو نو مکمل دیت به ورکوي اګر که غوږونه یې په ظاهري ډول جوړ وو.[3]

که د سترګو نظر یې ور ختم کړو او سترګې یې را وویستلې او یا یې سترګې ونه وتلې او نظر یې ختم شو مکمل دیت دی او که د یوې سترګې نظر یې خراب شو نو بیا نیم دیت دی .[4]

زیږمې (هغه پردې چې سترګې پټوي او په سرونو کې یې بانه وي) که دا چا پرې کړې او بانه یې هم ورسره پرې کړل پدې کې هم پوره دیت دی او که د یو طرف وې نو بیا نیم دیت دی.[5]

د اواز په ورکېدلو کې هم پوره دیت دی یعنې چا په چا باندې داسې وار وکولو چې له اثر نه یې د هغه اواز بالکل ختم شو او بېرته را پیدا نشو نو پوره دیت پرې واجب دی .

د پوزې په پرې کولو کې پوره دیت دی .[6]

همدارنګه که پوزه یې جوړه وه خو شامه (د بوی کولو) قوه یې ختمه شوه نو پوره دیت دی .

---

[1] **المحیط**
[2] **المحیط**
[3] **الظهیریة**
[4] **الذخیرة**
[5] **الهدایة**
[6] **فتاوی قاضي خان**

که داسې جنایت یې ورسره وکولو چې پوزه یې په ښکاره جوړه وه خو تنفس یې پرې نشوای کولی او تنفس یې د پوزې په ځای په خوله کولو نو څومره نقصان یې ور رسولی دی پدې کې به ماهرو خلکو ته رجوع وکوي هغوی به فیصله وکوي چې د پوره دیت څومه برخه ترې واخلي .[1]

په دواړو شونډو کې یو دیت دی او په یوه شونډه کې نیم دیت دی که ښکتنۍ وي که پورتنۍ دواړه یو شان دي .[2]

په هر غاښ کې د مکمل دیت شلمه برخه ده غاښ که هر یو وي حکم یې یو دی که د زامې وي که د مخې وي که ښکتني او که پورتني وي حکم ورسره نه بدلیږي .[3]

د ټولې ژبې په پرې کولو کې یا د لږ برخې د ژبې په پرېکولو کې چې بیا خبرې نشي کولی مکمل دیت د ی او که ځینې حروف یې تلفظ کولی شوئ او ځینې یې نشوای کولی نو مکمل دیت به په ټولو حروفو باندې تقسیم کړي نو چې کوم حروف نشي تلفظ کولی د هغې برخه به ترې واخیستل شي او ځینې علماوو ویلي دي چې په ټولو حروفو نه بلکه په هغه حروفو به تقسیم کړل شي چې کوم په ژبه اداء کیږي او کوم چې نشي اداء کولی نو د هغې په اندازه دیت به ورڅخه واخیستل شي او که ډیر حروف یې اداء کولی شوای لږ یې نشوای کولی نو هلته به د ماهرو خلکو رایه واخیستل شي هغوی به فیصله وکوي چې باید د مکمل دیت څومه برخه ورڅخه واخیستله شي او که لږ یې اداء

---

1 الذخيرة
2 المحيط
3 المبسوط

کولی شوای او ډېر یې نشوای اداء کولی نو مکمل دیت به ورځخه واخیستل شي.[1]

او هغه کس چې له مخکې نه ګونګی وو چې د هغه ژبه یې پرې کړه نو هغه خو خبرې له مخکې نه هم نشوای کولی نو هلته به هم د ماهرو خلکو رایه واخیستل شي چې هغوی فیصله وکوي چې د ژبې څومره برخه ضائع شوې ده.[2]

که دواړه لاسونه یې په غلطي سره پرې کړل نو مکمل دیت دی او که یو لاس یې پرې کړو نو نیم دیت دی په یو لاس کې بیا فرق نشته چې ښی وي او که چپ دواړه یو شان دي او په د واړو باندې نیم دیت دی یو به په بل باندې غوره نه ګڼل کیږي.[3]

پدې ټولو اندامونو کې لویه خبره داده چې ځینې اندامونه د یوې فایدې لپاره وي او ځینې د ښائست لپاره وي چې د فایدې لپاره وي چې د هغوی فایده مکمله له لاسه لاړه شي او چې د ښائست لپاره وي چې ښائست مکمل له لاسه لاړ شي نو مکمل دیت به وي او که نیمه فایده او نیم ښائست له مینځه تللی وو نو بیا نیم دیت دی.[4]

د لاس او پښو په ګوتو کې په هره یوه کې د مکمل دیت لسمه برخه ده او په کومو ګوتو کې چې درې بندونه دي نو په هر بند یې د مکمل دیت د لسمې برخې دریمه ده او په کومه ګوته کې چې دوه بندونه دي نو په هر بند یې د مکمل دیت د لسمې برخې نیمه برخه ده.[5]

---

1 الكافي
2 المحيط
3 الذخيرة
4 الهداية
5 الهداية

او كه اضافي ګوته يې ور پرې كړه نو هلته به د ماهرينو خلكو نظريه واخيستله شي هغوى به فيصله وكوي چې د مكمل ديت څومه برخه ترې واخلي.[1]

او هغه لاس چې شل وي كه يې هغه ور پرې كړو نو دا دده لپاره څومره د استعمال او يا د ښائست وو نو پدې كې به ماهرين خلك فيصله وكوي او د هغې مطابق به فيصله وشي چې د مكمل ديت څومه برخه پرې لازمه كړي.[2]

كه په لاس يې وار وكولو او د هغه وار له امله يې لاس شل شو نو د پوره لاس ديت به ورڅخه اخيستل كيږي.[3]

كه يې د ګوتې يو بند ور پرې كړو د هغې له امله ټول لاس او يا ټوله ګوته شله شوه كار يې پرېښود نو كه دا كار قصداً هم وو قصاص پكې نشته د ګوتې د يو بند به ديت وركوي په نور لاس كې به ماهرين خلك فيصله وكوي چې ددې پرې كولو په نور لاس تاثير څومره دى بيا به د هغې فيصلې مطابق ورڅخه ديت واخيستل شي.[4]

همدارنګه كه په خطاء سره د چا پښې ور پرې كړي نو په دواړو كې مكمل ديت دى او په يوه پښه كې نيم ديت دى .[5]

هغه لاس او پښه چې نه ښوري او شل وي نو په هغې كې به ماهرين خلك فيصله كوي چې ددې پرې كول ده ته څومره تاوان دى نو په هماغه اندازه

---

1 الجوهرة النيرة
2 المحيط
3 خزانة المفتين
4 الذخيرة
5 المحيط

تاوان به ورځخه واخلي او که یې شورول نو بیا پوره دیت دی.[1]

د زنانه تیونه یې که پرې کړل مکمل دیت دی او په یو تي کې یې نیم دیت دی او د سرې په تیونو کې دیت نشته خو تاوان به ورکوي او د ماهرینو په فیصله او په ښځه کې وړوکې او لویه بیا یو شی دي همدارنګه د ښځې سینې که لویې او که وړې وې نو مکمل دیت پرې واجبیږي.[2]

که د خنثی مشکل تیونه وو د امام ابي حنیفه د مسلک له مخې حکم یې د ښځې د تیونو دی او صا حبین وایي د سړي او د ښځې د تیونو نیم دیت وربانډې واجبیږي.[3]

که چا کوم سړی په شا بانډې ووهلو او د هغې له امله دده جنسي قوت ختم شو نو مکمل دیت وربانډې آوړي.[4]

په همدې ډول که د سړي ذکر یې ترینه پرې کړو نو مکمل دیت دی او که د هغه چا ذکر یې پرې کړو چې هغه خصي وو (هسې هم په جماع بانډې قادر نه وو) هلته به ماهرین منصفین فیصله کوي چې څومره تاوان باید ورکړي بیا که ذکر حرکت کولو او که یې نه کولو دواړه یوه خبره ده.[5]

ټول ذکر خو پرېږده صرف سر یې چې ترې پرې کړل شي هم پوره دیت به ورکوي او که داسې یې وکول چې اول یې صرف حشفه (سر) ترې پرې کړو بیا یې نور هم ورځخه پرې کړو نو که دوهم ځل پرې کول د زخم له جوړیدو مخکې وو نو یو مکمل دیت دی

[1] فتاوی قاضیخان
[2] عالمګیري
[3] السراج الوهاج
[4] فتاوی قاضیخان
[5] عالمګیري

او که د زخم له جوړېدو وروسته وو نو د حشفې (د ذکر د سر) په قطع کې به مکمل دیت ورکړي او د نور په قطعه کې به تاوان ورکړي چې ماهرین منصفین فیصله پرې وکړي.[1]

او که د بدن په کوم بل ځای یا په شا باندې یې ووهلو او د زخم اثر پاتې شو هلته به ماهرین منصفین فیصله کوي چې څومره تاوان ترې واخلي او که اثر یې پاتې نشو نو بیا هېڅ تاوان پکې نشته لکن امام ابو یوسف او امام محمد فرمایي د هغه د علاج مصرف به ټول جنایت کونکی ورکوي.[2]

د خصیتینو په پرې کولو کې مکمل دیت دی.[3]

او که یوه خصیة یې ورڅخه پرې کړه خو لدې سره د سړي اوبه بندې شوې نو بیا هم مکمل دیت دی.[4]

که چا له چا څخه دواړه کوناټي پرې کړل نو مکمل دیت دی او په یوه کې یې بیا نیم دیت دی.[5]

که یې ګېډه په کوم شي باندې سوری کړه او هغه چې خوراک کولو هغه به ترینه بهر راوتلو نو مکمل دیت دی .[6]

که په ښځه یې وار وکولو او د هغې نه لکه د بیماري داسې وینه روانه شوه او یا نارینه او ښځه ورسره سلسل البول شوه (خالي متیازې یې نشوای نیولی) نو تر یو کال پورې به صبر وکوي

---

1 الظهيرية
2 خزانة المفتين
3 المحيط
4 خزانة المفتين
5 المحيط
6 الخلاصة

که دا بیماري ښه نه شوه نو پوره دیت به ورکوي [1].

## کفاره

هغه کس چې په خطاء سره ورځخه قتل وشي نو په هغه باندې دوه شیان واجبیږي یو دیت چې د هغه عاقلة به یې ورکوي (د عاقلې په اړه خبره مخکې تېره شوېده) او بل به کفاره ورکوي کفاره به یو له عیبونو پاک غلام ازادول وي او چې هغه نه وي نو بیا مسلسل دوه میاشتې روژکه نیول دي الله فرمایي : وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَن يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلاَّ خَطَئًا وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَئًا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىأَهْلِهِ إِلاَّ أَن يَصَّدَّقُوا فَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةً فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ اللَّهِ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا(٩٢). [2]

ترجمة :او هرڅوک چې مړ کړي کوم مؤمن په خطا سره نو (شته پر قاتل) ازادول د غاړې (د مریي) مؤمن او (بل) دیت دی سپارلی شوی اهل (وارثانو) د مقتول ته مګر دا که معاف کړي دا (وارثان دغه قاتل) پس که ؤ (دا مقتول) له (هسې) قومه چې دښمن وي تاسې لره حال دا چې دا (مقتول) مؤمن وي نو (شته پر قاتل تش) ازادول د غاړې (د مریي) مؤمن ((بې له دیته)) او که وو دا مقتول له (هسې) قومه چې په مینځ ستاسې او په مینځ د هغه قوم کې عهد وي نو (شته پر قاتل یو) دیت ور سپارلی شوی اهل (وارثانو) د مقتول ته او ((بل)) آزادول د غاړې (د مریي) مؤمن دی پس هرڅوک چې ونه مومي (مریی یا مال

[1] المحیط في المتفرقات
[2] سورة النساء

چې پرې مريى واخلي) نو (پرې) روژه نيول د دوو مياشتو دي پر له پسې (بلا انقطاع د پاره د قبلولود ) توبې له (جانبه د) الله او دى الله ښه عالم (په ټولو احوالو) لوى حكمت واله (چې هركار په حكمت او مصلحت سره كوي) .

د جمهورو علماوو دا رايه ده چې الله صرف دوه شيان ياد كړي دي يو غلام ازادول او كه هغه د چا په وس پوره نه وي نو دوه مياشتي مسلسله روژه نيول نو د بل شي احتمال پكې نشته خبره يې خلاصه ده خو امام شافعي فرمايي كه چېرته څوك له روژې نه هم عاجز وو نو بيا د شپېتو مسكينانو ته خوراك وركړي لكه د ظهار او نورو كفارو كې چې دوه مياشتې روژه ياده كړل شوېده نو كه څوك له روژې نه عاجز شي نو بيا به شپيتو مسكينانو ته خوراك وركوي جمهور علماء فرمايي د قتل په اړه په كفاره كې الله صرف دوه شيان ياد كړي دي يو غلام ازادول او كه هغه نه وي نو بيا دوه مياشتې مسلسله روژه نيول او كه چېرته د خوراك وركولو خبره واى نو الله به ذكر كړې وه .

امام شافعي فرمايي : مونږ دا كفاره قياس كوو په هغه كفاره چې په ظهار كې ده هلته كه څوك ده او يا د روژې په خوراك كې ده هغه هم دوه مياشتې روژه ده خو كه څوك په روژه نيولو قادر نه وي نو بيا شپېتو مسكينانو ته هلته خوراك وركول دي نو دلته هم دي .

علماء فرمايي :

كه چېرته يو قاتل د روژې نيولو نه عاجز وو نو بيا به وګورو كه چېرته دده د عجز دائمي وو يعني داسې همېشه بيماري وربانديې وه چې كله هم ددې فكر نه كېدو چې دى به په روژه نيولو باندې قادر شي نو بيا د خوراك كفاره وركړي او

که ددې امید وو چې یو وخت به دی په روژه نیولو و توانیږي نو بیا دی د خوراک کفاره نشي ورکولی صبر به وکوي چې کله جوړ شي بیا به دوه میاشتې سر په سر روژه ونیسي .

# ماخذونه


1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. صحيح البخاري
9. صحيح مسلم
10. سنن الترمذي
11. سنن النسائي
12. سنن أبي داود
13. سنن ابن ماجه
14. سنن الدارمي
15. سنن الدارقطني
16. شرح النووي على مسلم
17. فتح الباري شرح صحيح البخاري
18. حاشية السندي على ابن ماجه
19. عون المعبود
20. تحفة الأحوذي
21. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
22. السيرة النبوية (ابن هشام)
23. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى
24. زاد المعاد
25. البداية والنهاية
26. جامع العلوم والحكم
27. سير أعلام النبلاء
28. بداية المجتهد ونهاية المقتصد

29. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
30. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
31. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
32. جمع الوسائل في شرح الشمائل
33. رد المحتار على الدر المختار
34. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء
35. فتح القدير
36. البحر الرائق شرح كنز الدقائق
37. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان
38. القواعد النورانية الفقهية
39. أنوار البروق في أنواع الفروق
40. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين
41. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي
42. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين
43. القاموس المحيط
44. لسان العرب
45. النهاية في غريب الحديث والأثر
46. مختار الصحاح
47. الحاوي للفتاوي



# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله پښتو
3. آشیانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې اېښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو
9. ډم ډمکو جي او لیکوال
پښتو
10. ادیان پشت در
فارسي
11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو
12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو
13. کفري الفاظ
پښتو
14. کل بچه
فارسي
15. معلومات عمومي فارسي

16. د حج لارښود پښتو او انګلیسي
17. محمد رسول الله سیرت اخلاق او پېژندنه پښتو
18. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اول پښتو
19. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دوهم پښتو
20. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دریم پښتو
21. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه څلرم پښتو
22. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه پنځم پښتو
23. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه شپږم پښتو
24. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اوم پښتو
25. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه آتم پښتو
26. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه نهم پښتو
27. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه لسم پښتو
28. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اول پښتو
29. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دریم پښتو

31. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه څلورم پښتو
32. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه پنځم پښتو
33. د علم حدیث مطالعه پښتو او انګلیسي
34. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه شپږم پښتو
35. کلمه طیبة پښتو
36. الدعاء پښتو
37. اللهم عربي، پښتو، انګلسي
38. المسجد پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه پښتو
40. سلام پښتو
41. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اومه برخه پښتو
42. د وخت اهمیت (لمړی برخه) پښتو
43. د وخت اهمیت (دوهمه برخه) پښتو
44. د وخت اهمیت (دریمه برخه) پښتو
45. الحکمة ١ پښتو
46. الحکمة ٢ پښتو
47. الحکمة ٣ پښتو
48. الحکمة ٤ پښتو

49. حتمي سفر (مرګ)
پښتو

50. حتمي سفر (شهادت)
پښتو

51. حتمي سفرل (قتل) ستاسې
په لاس کې

